## د (٤) لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال : یو درسی ساعت (۴۵ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطالبو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | د افغانستان اساطيري تاريخ (د پیشدادیانو واکمني) |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د افغانستان د اساطيري تاريخ په اړه معلومات تر لاسه کړي. |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | زده کوونکي دی د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د پیشدادیانو د واکمنۍ په اړه به معلومات پیدا کړای شي،<br>– د پشدادیانو د لړۍ مهم واکمنان به فهرست کړای شي،<br>– د پیشدادیانو د شاهانو کار نامې به تحلیل کړای شي،<br>– د افغانستان د اساطيري تاریخ له مطالعې سره به مينه پيدا کړي. |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... |
| **د ارزونې طريقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... |

| د مطلبونو سرلیکونه | فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| **لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، سترې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **۱۰ دقیقې** |

| منځنــــــــی او وروستۍ کړنې | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخــت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| **(فعالیتونه)** | - پـر تختـه بانـدې د لوسـت د سـرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکـو ویشـل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوسـت ارزونـه او د کـورنۍ دنـدې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمـو مطلبونـو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخـوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دنـدې سـرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | **۳۵ دقیقې** |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د پشدادیانو د لړۍ موسس کیومرث (هوشنګ) و.

۲- د بلخ ښار د یما پاچا په وسیله جوړ شو او هغه ښار یې د اس زغلولو د ډګر په کچه جوړ کړ چې په هغه کې د اوبو ډنډونه، د آس زغلولو ډګرونه او د کورونو لپاره مناسبې سیمې او د هغه تر څنګ یې یو ژوبڼ هم جوړ کړ.

۳- ضحاک له یما څخه وروسته واک تر لاسه کړ. هغه یو ظالم سړی و او په زور او جبر یې پاچایي کوله چې د هغې له امله ډیر خلک له ستونزو سره مخامخ شول.

**اضافي معلومات**

د افغانستان اساطیري تاریخ د پیشدادیانو له لړۍ سره پیل کیږي. کرنه او دکرنې پراختیا په همدې دوره کې منځ تـه راغلې ده چې د البیروني په قول د حکومت او شاهي نظام اصل هوشنګ منځ ته راوړی دی او له دې روایت څخه جوتیږي چې اوستایي مدنیت د ویدي او کوچیاني ژوند سره توپیر درلود. په دې معنا چې د بخدي (بلخ) خلکو پـه دې مهال کې د کرنې، ودانۍ او د کلو او ښـارونو پـه جوړولـو لاس پـورې او د کوچیـاني او بـدوی اقتصـاد څخه اسکان شوې او کرنیزې ژوند مرحلې ته ورسیدل او د حکومتونو او سلطنتونو بنسټ یې کیښود او هوشـنګ پـه یـوه پراخه خاوره باندې واکمن و او د مدنیت له دښمنانو سره یې جګړه کوله.

**د لا زیاتو معلوماتو په موخه دې لاندنیو منابعو ته مراجعه وشي:**

- افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار.
- تاریخ مختصر افغانستان، عبدالحی حبیبي.

# د (۵) لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د افغانستان اساطیري تاریخ (د کیانیانو واکمني) | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د کیانیانو د کورنۍ په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د کیانیانو له لړۍ سره به پېژندګلوي پیدا کړای شي،<br>– د دې لړۍ د واکمنانو نومونو به واخیستلی شي،<br>– د کیانیانو د لړۍ تاریخي پیښې به تحلیل کړای شي،<br>– د افغانستان له اساطیري تاریخ سره به مینه پیدا کړای شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>۱۰ دقیقې |

| منځنـــــــی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخـــت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشـل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوســت ارزونــه او د کـورنۍ دنــدې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرگندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونـو یاداشت،<br>- په ټولگي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولگي کې د دنـدې سـرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د کیانیانو د کورنۍ لومړنی واکمن کیقباد نومیده چې د پلار (رستم پهلوان) له غوښتنې سره سم بلخ ته څیرمه د البرز د غره پرتخت کښیناست.

۲- سیاوش د بلخ له زړورو او باتورو واکمنانو څخه و چې له کیکاوس څخه وروسته د تاج او تخت خاوند شو. نوموړي د آریانا ویجې په ناحیه کې ستره کلا جوړه کړه چې په اوستایي متونو کې د دژکنك په نامه یاده شوې ده او د تورانیانو د پادشاه افراسیاب نومې له لور فرنگیس سره یې واده وکړ.

۳- د کیانیانو وروستنی چارواکی کیخسرو و، هغه د کیانیانو مختلفې سیمې یو له بلې سره وتړلې او له ډیر واك او اختیار څخه برخمن شو.

**اضافي معلومات**

د کیانیانو لړۍ چې له پیشدادیانو څخه وروسته منځ ته راغلې ده، د افغانسـتان د اسـاطیري تـاریخ دویمـه لـړۍ بلـل کیږي. د دې لړۍ د نوم ایښودلو په اړه باید وویل شي چې کوي یا کاوي هم په ویدي او هم په اوستایي ژبو کې د پوه- پادشاه- امیر په معنا راغلې دي چې د اوستا په قول کوي له کی سـره مسـاوي د بلـخ او د هغـه شـا او خـوا سیمو د پخوانیو شاهانو په لقب کې معمول و او د اوسني افغانستان په لویدیځو سیمو کې یې استعمال نه درلوده.

د کوي مساوي په کی کلمه د بلخي شـاهانو د نومونـو پـه لومړیـو کـې وینـو چـې د پیشـدادیانو لـه کـورنۍ څخـه وروسته واک ته رسیدلي دي. په دري ژبه کې له کیان سره یې کی یو ځای کړی او دې کورنۍ تـه یـې پـه نـورو کتابونو کې کیان، کیانیان یا کیاني ویلې دي.

د اوستا د کتاب په قول د دې کورنۍ لـومړنی پاچـا کواتـه، (کیقبـاد) و او د دې لـړۍ وروسـتی پاچـا کیخسـرو و. کیخسرو د کیاني لړۍ یو غښتلی او پیاوړی پاچا و چې د کیاني شاهنشاهۍ ټول هیوادونه یې سره یوځـای کـړل او وروسته له هغه د کیاني لړۍ پای ته رسیږي.

**د لا زیاتو معلوماتو په موخه دې لاندنیو منابعو ته مراجعه وشي**

- تاریخ مختصر افغانستان، عبدالحی حبیبي.

# د (٦) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس مهال : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطالبو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د افغانستان اساطیري تاریخ – د اسپه واکمنی | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د اسپه کورنی په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– له اسپه کورنی سره به پیژندګلوي پیدا کړای شي،<br>– د اسپه د کورنی سیاسي او ټولنیزه وضعه به تحلیل کړای شي،<br>– د اسپه د کلمې مفهوم به بیان کړای شي،<br>– د دې کورنی له تاریخي لړۍ سره به مینه پیدا او هغه به د افغانستان د اساطیري تاریخ د یوې برخې په توګه وپیژني. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>۱۰ دقیقې |

| منځنـــــــی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخـــت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل، - پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل، - د لوست تشریح او توضیح، - په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل، - پوښتنو ته ځواب ورکول، - د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل، - د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول، - د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت، - په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول، - د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول، - په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول، - د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د دې لپاره چې د اسپه د کورنۍ د هر یو واکمن د نوم په پای کې د (اسپه) پسوند راغلې، نو له همدې امله په تاریخي متونو کې د اسپه د کورنۍ په نوم شهرت لري.

۲- د اسپه د کورنۍ لومړنی واکمن لهراسپ نومیده، نوموړی د کیاني په ټول قلمرو باندې واکمن، د ستر شخصیت لرونکی او یو عادل سړی و. هغه ډیر ودانیز کارونه سر ته رسول.

۳- د اسپه د کورنۍ وروستنی واکمن سپینتوداتایا اسفندیار و، هغه یو پوه او زړه ور پاچا و او ډیر ودانیز کارونه یې سر ته ورسول او د زردشتي کیش لپاره یې د پام وړ خدمتونه وکړل.

**اضافي معلومات**

له کیاني کورنۍ څخه وروسته د پخواني افغانستان په تاریخ کې دریمه لړۍ د اسپې په نوم یاده شوې ده او دا لړۍ د اسپې له پسوند سره چې د دې لړۍ د پاچاهانو د هر یوه له نوم سره و، د اسپې د کورنۍ په نوم یاده شوې ده. د بیلګې په توګه د لهراسپ، ګستاسپ، پوراسپ او له ځیني نورو څخه کولای شو یادونه وکړو.

کوم څوک چې له کیخسرو څخه وروسته د بلخ د پاچاهۍ پر تخت کښیناست لهراسپ په نامه یاد شوی دی چې د هغه معنا تیز او چابک اس دی او نسب یې کیقباد او منوچهر ته رسیږي، لهراسپ د دې لړۍ لومړنی پاچا و چې د نوموړي له واکمنۍ سره د اسپې لړۍ پیل کیږي. نوموړی د اذر برزین په نوم آتشکده (د اورپرستانو د عبادت ځای) جوړه کړه او د خپل یو تن سپاه سالار سره یې په اورشیلم باندې یرغل وکړ او هغه یې ویجاړ کړ او د ژوند په پای کې یې واک خپل زوی ګیشتاسپ ته پرېښود او پخپله د بلخ نو بهار ته لاړ او د زردشت کیش یې ومانه.

ګیشتاسپ یو نیک عمله او پاک نفسه سړی و او پرخپلو دښمنانو باندې بریالی شو. له ګیشتاسپ څخه وروسته زوی یې اسفندیار واک ته ورسید، اسفندیار یو هوښیار او پوه سړی و، خو د ځینو روایاتو پر بنسټ نورو شاهانو هم تر هغه وروسته واکمنۍ کړې ده چې له هغې ډلې څخه بهمن اسفندیار او لور یې همای او د همای زوی داراب و چې د دوی د واکمنۍ سیمه هلمند او سیستان وه.

**د لا زیاتو معلوماتو په موخه دې لاندنیو منابعو ته مراجعه وشي**


- تاریخ مختصر افغانستان، عبدالحی حبیبي.
- لرغونی افغانستان، رسول باوری.

## د (۷) لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | پخوانی افغانستان او هخامنشیان |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د هخامنشیانو د لړۍ په اړه معلومات تر لاسه کړي. |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د هخامنشیانو له لړۍ سره به پېژندګلوي پیدا کړای شي،<br>– د هخامنشیانو له واکمنۍ سره به د افغانستان اړیکې تحلیل کړای شي،<br>– د هخامنشیانو د پاچاهانو نومونه به واخیستلی شي،<br>– د افغانستان له لرغونی تاریخ سره به مینه پیدا کړي،<br>– د هخامنشیانو تر واکمنۍ لاندې سیمې به د نقشې پرمخ وښودلای شي. |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... |

| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | ۱۰ دقیقې |

| منځنۍ او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د هخامنشیانو امپراتور کوروش د افغانستان د نیولو هڅه وکړه او نوموړي له میلاد څخه وړاندې په ۵۴۹ کال کې د افغانستان ځینې برخې ونیولې.

۲- له میلاد څخه وړاندې په ۳۳۳ کال کې د هخامنشیانو امپراتوري د یونانیانو لخوا له منځه ولاړه او د هغې تر ولکې لاندې سیمې له یوناني امپراتورۍ سره یو ځای شوې.

**اضافي معلومات**

له میلاد څخه وړاندې له شپږمې تر څلورمې پیړیو پورې افغانستان له سیاسي اړخه کمزوری شوی و، ځکه چې له میلاد څخه وړاندې په ۸ او ۷ پیړیو کې کوم غښتلی دولت چې پخوایې درلود هغه یې له لاسه وکړ، سیاسي مرکزیت له منځه ولاړ او محلي واکمنانو د خپلو شخصي ګټو د ساتلو په موخه د هخامنشیانو د سیاست تابع داري کوله، خو په ټولنیزو برخو کې یې تدریجي پر مختګ دوام درلود.

سره له دې چې هخامنشي دولت علومو ته د پام وړ کوم خدمتونه نه دي کړي، خو بیا هم د هیواد په نظم او اداره، هنر او معمارۍ کې مخکښ و.

هخامنشي دولت په افغانستان کې آرامي رسم الخط رامنځته کړ او په همدې توګه یې د دفترداریۍ، معمارۍ، حجارۍ او د اوبو لګولو فن منځ ته راوړ.

هخامنشي دولت په افغانستان کې سیاسي جوړښت او ملکي ویش هم منځ ته راوړ او د خپل قلمرو په هر لوی ولایت کې یې ساتراپي (والي) درلود چې دیو پوځي سردار او یو دبیر (منشي) سره یې یو ځای د ولایت چارې په خپلواکه توګه اداره کولې.

خو سره له دې هم په دې پیر کې د افغانستان تمدن او کلتور د پر مختګ په حال کې و.

**د لا زیاتو معلوماتو په موخه دې لاندنیو منابعو ته مراجعه وشي**

- تاریخ مختصر افغانستان، عبدالحی حبیبي.
- افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار.

# د (۸) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس مهال : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | لرغونی افغانستان او یونانیان |
| عمومي موخه | پر افغانستان د مقدوني سکندر د یرغل له څرنګوالی سره د زده کونکو بلدتیا. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- پر افغانستان باندې د مقدوني سکندر د یرغل له څرنګوالي سره به بلد شي.<br>- د مقدونی سکندر د یرغل لاملونه به بیان کړای شي.<br>- د یرغلګرو بر وړاندی له هیواد څخه د دفاع د روحیې تقویه کول.<br>- د سکندر د یرغل پر مهال د افغانستان سیاسی حالت به تحلیل کړاي شي. |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... |

| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضری اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | ۱۰ دقیقې |

| منځنی او وروستی کړنې | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| **کړنې (فعالیتونه)** | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | **۳۵ دقیقې** |

**د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**

۱. مقدوني سکندر ۳۳۰ کاله مخکې له میلاد څخه دهخامنشیانو امپراتورۍ له منځته یوړه.

۲. مقدوني سکندرپه باخترکې د رخشانې نومې جنۍ سره واده وکړ.

**۳.** دمقدوني سکندر له مړینې څخه وروسته دهغه دقوماندانانو ترمنځ د واک پرسراختلاف پیدا شوچې خونړۍ جګړې ونښتې په پای کې دهغه له قوماندانانوڅخه یوکس دکاسندر په نوم دمقدونیې په ښارکې واک ته ورسید اویوناني امپراتوري په دریو لویو مرکزونو وویشل شوه.

**اضافي معلومات**

مقدوني سکندر دیونان دمقدونیه په ښارکې زیږیدلی دی. نوموړي له میلاد څخه ۳۳۱کاله ولاندې دپلار (دوهم فلیپ)، چې دیونان حاکم و، له مړینې څخه یې وروسته دحکومت واک په لاس کې ونیو. نوموړی یو مبارز ځوان او دیونان دستر فیلسوف ارسطو له شاګردانو څخه و او د اتلی خیال یی په سرکې ګرځیده. له میلاد څخه مخکې په ۳۳۴ کال کې نوموړي د ډېر شوزروپلو، څلورزرو سپرو او د څلویښتو ورځو توښې سره دهخامنشیانو له دولت سره دجګړې په نیت حرکت وکړ، هغه د دریو جګړو په ترځ کې د ایران پوځونو ته ماتې ورکړې اودغه هیواد یې ونیو، سکندر چې د نړۍ له سترو نړۍ نیوونکو څخه وه، دځلورو کلونو په اوږدوکې له خپلو پیاوړو عسکرو سره وتوانیده چې د کوچنۍ اسیا لوی هیوادونه، مصراو ایران په خپله ولکه کې راولي.

مقدونې سکندر دهخامنشیانو د امپراتورۍ له منځه وړلو څخه وروسته دهندوستان دنیولو په فکرکې شو، هندوستان ته د رسیدلو په هیله اړ و، چې له افغانستان څخه دیو ارتباطي پل په توګه ګټه واخلي، په دې توګه نوموړې په ۳۳۰ کاله مخکې له میلاد څخه د دریم داریوش د ښارنې په نیت چې افغانستان ته ننتیدلی و، لومړې یی په هرات اوبیایې دباختر پرلورخپلې حملې پیل کړې، مګردریم داریوش دباختر د والي (بسوس) د پلویانوله خوا د دامغان په سیمه کې ووژل شو.

کله چې مقدوني سکندر پر افغانستان باندې یرغل وکړ، افغانستان دیو مرکزي دولت له درلودلوڅخه بې برخې و، نوموړی په افغانستان کې دهغه دهیلې اوانتظار په خلاف دخلکو له وسله وا ل مقاومت سره مخ شو چې دځلورو کلونو په اوږدوکې دافغانستان اوسغدیانا د لاس ته راوړلوپه هیله په ډیروسختیو جګړوکې بند پاتې شو، په پای کې وتوانیده چې دتوس اوهرات له لارې، قندهار، کابل اوبیا وروسته بلخ اوماورالنهر ته ورسیږي.

په پای کې مقدوني سکندر له میلاده ۳۲۷ کاله مخکې دهندوکش دغرونوله لارې دهندوستان په لورې یرغلونه پیل کړل، نوموړی دهغو جګړو په بهیر کې چې دافغانتسان په ختیځ کې یې ترسره کړي وو، له بطلیموس سره یوځای ټپي شو. دسکندر لښکر دځلورو کلونو په موده کې دافغانستان دخلکو دبې شمیره پاڅونونو او دفاعي جنګونو سره په طوس، هرات، غزني، بلخ او ماورالنهر کې ستړي شوي وه، خوبیایې هم وکولا شول چې د سند له سیند څخه تېر شي او د جهلم (پوروس) په غاړه (ځنډه) کې دپنجاب پاچاته ماتې ورکړي.

له هغه څخه وروسته سکندرد بیاس ترسینده پورې مخکې ولاړ، خونور دهغه له پوځونو څخه دجنګي سفرونو د زغم توان تللی و، نو دبلوچستان او ایران له لارې د بابل پرلور رهي شو او هلته یی د(۳۲) کلونو په عمر له نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

**د ډیرو معلوماتو په موخه دې لاندنیو منابعو ته مراجعه وشي**

۱. افغانستان درمسیرتاریخ، میرغلام محمدغبار.
۲. باستان شناسی مدنیت های اولیه افغانستان، رسول باوری.

# د (۹) لوست دتدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال: یودرسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | موریایان او لرغونی افغانستان | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د موریایانو دحکومت اود هغه وخت له سیاسي حالاتو سره بلد شي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د موریایانو دحکومت دمنځته راتلو له څرنګوالي سره دې بلد شي،<br>–په نقشه کې دې دموریایانو دواک لاندې سیمو دمعلومولومهارت پیدا کړای شي،<br>–په زده کوونکوکې دې د هیواد پالنې د فکرپیاوړتیا رامنځته کړای شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرليک ليکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو ليکل،<br>- د لوست تشريح او توضيح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدريس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرگندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهير کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولگي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولگي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلين رعايت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱. دموریایانودلومړني پاچا نوم چندراگوپتا و چې له میلاد څخه ۳۲۴کاله مخکې په هند کې واک ته ورسید، دافغانستان ځینې ختیځې سیمې، چې دیونانیانو په واک کې وې په خپله ولکه کې یې راوستلې.<br>۲. بندوسارا، انتیاکوس ته ولیکل چې ماته یو کس طبیب، خواږه شراب اویوه اندازه وچ انځرراولیږه، انتیاکوس ورته په ځواب کې ولیکل چې شراب او وچ انځربه درولیږم خودیونانیانو په قانون کې دعالم اوطبیب پلورل منع دي.<br>۳. آشوکا دبودایي کیش لاروی و نوموړي دبودایي آیین په خپرولو کې ډیرزیارونه وگالل اوډیرمبلغان یې افغانستان اودنړۍ نوروسیموته واستول. | | |

**اضافي معلومات**

موریایان دهندي واکدارانو له لړیو څخه یوه کورنۍ گڼل کیږي چې له میلاد څخه ۳۲۴کاله مخکې واک ته د چندراگوپتا په رسېدلو سره ددې لړۍ حکمراني پیل کیږي. دهند موریایانو هغه وخت دلرغوني افغانستان په ځینو برخو حاکمیت وموند چې دهغه وخت په یوناني امپراتورۍ کې تزلزل، بې اتفاقي اوځان ځانی لاره پیدا کړې وه. له مقدوني سکندرڅخه وروسته دیوناني امپراتورۍ سیمې دبېلابېلو خپلواکو یوناني قوماندانانو له خوا اداره کېدلې.

سلوکیدیانوله شام څخه دیونانیانو دختیځې امپراتورۍ سیمې اداره کولې. دوخت په تېرېدلو سره د ټولوکارونو له اداره کولوڅخه کمزوري شول اودیوناني قوماندانانو ترمنځ بې اتفاقي رامنځته شوې. داپخپله ددې لامل شوې چې دهند دموریایانو نوي را څرگند شوي ځواک له دې فرصت څخه گټه واخیستله اوخپل پرمختگ ته یې دوام ورکړ چې په دې توگه یې دلرغوني افغانستان ځینې سیمې تر خپلې ادارې لاندې راوستلې.

دهند دموریایي لړۍ مشهور واکمن چندراگوپتا دی چې ۲۴کاله یې په یوه پراخه سیمه باندې حکومت وکړ.

نوموړي دخپل مدبر وزیر نندرا په مرسته او لارښوونه دخپلې امپراتورۍ اداره پرمخ بیوله.

له میلاد څخه ۳۰۵کاله مخکې سلوکیدي عسکرو دگندهارا(ننگرهار) دسیمو دلاس ته راوړلوپه موخه دهندي موریایانو په وړاندې لښکر راوویست، خو موریایانو له خپلوسنگرونوڅخه ساتنه وکړه چې په پای کې دموریایانو اوسلوکیدیانو

ترمنځ سوله رامنځته شوه او د گندهارا سیمې دموریایانو د واکمنی سیمو په برخوکې پاتې شوې.
دچندراگوپتا له مړینې څخه وروسته له میلاد څخه ۳۰۰کاله مخکې دهغه زوی بندوسارا واک ته ورسید چې گندهاراېې هم په واک کې وه، نوموړي دسلوکیدیانو سره ښې اړیکې ټینگې کړې، دهغوی ترمنځ سوداگریزو اړیکو وده وموندہ، دغه اړیکې دهندي اویوناني فرهنگ د یوځای کېدلو لامل شوې.

د ډیرو معلوماتو په موخه لاندې منابعو ته مراجعه وکړئ.

۱. باستان شناسی مدنیت های اولیه افغانستان، رسول باوری.

## د (۱۰) لوست دتدریس لارښود پلان

د تدریس مهال: یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د یونان- باختري خپلواک دولتونه | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې دیونان- باختري دولتونو د رامنځته کېدلو له څرنګوالي سره بلد شي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- زده کوونکي به د یونان- باختري خپلواکو دولتونو په هکله دي معلومات ترلاسه کړي،<br>- ددې دورې د تاریخي اثارو په ارزښت به پوه شي،<br>- زده کوونکي به دهیواد له لرغونواوتوریستي سیمو سره مینه پیداکړي،<br>- دیونانیانو ځانګړتیاوې اوخصوصیات به وپیژني،<br>- د یونان- باختري حکومتونو ترواک لاندې سیمې به په نقشه کې وښودلی شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنی او وروستۍ کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنی دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي خرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱. دیونان- باختري دولت لومړني ینسټ ایږودونکی دیودتس دلومړي ځل لپاره په باخترکې له سلوکیدیانو څخه خپله خپلواکي اعلان کړه.<br>۲. آی تیدیوم ۲۲۰ کاله مخکې له میلاد څخه د باخترنوی خپلواک حاکم شو.نوموړی لومړنی سړی وچې یوناني هنریې دهند تر نیمې وچې پورې ورساوه.<br>۳. د یونان – باختري وروستنی امپراتورچې دباختر په ټوله حوزه باندې یې واک درلوده، دیمیتروس نومیده. | | |

**اضافي معلومات**

لرغونی یونان دبالکان په سویلي جزیره(ټاپو) کې پروت دی،دا دخاورینو غرونو هیواد دومره حاصل ورکوونکی هم نه دی، یواځې دشمال په ځینو لویو پرتو سیموکې یې دکرنې لپاره مناسبې اوحاصل خیزه دښتې لیدل کیږي.

زموږ بحث د یونان- باختري دولت په هکله دی، ددې لوی بنسټګرلومړنی دیودتس دی چې ۲۵۵کاله مخکې له میلاد څخه په باخترکې خپله خپلواکي اعلان کړه. دنوموړي د واکمنۍ په مهال کې، باختر د سغد، مروه، بلخ او دتخار له سیمو څخه عبارت وو.

لومړی دیودتس له میلاد څخه ۲۵۰کاله مخکې مړ شو، دهغه له مرګ څخه وروسته دهغه زوی دویم دیودتس واک ته ورسید، هغه له میلاد څخه مخکې تر۲۳۰کاله پورې دباختر په خاوره واکمني وکړه، دپارت له حکومت سره یې غوره اړیکې ټینګې کړې، په دې توګه دسلوکیدیانو په وړاندې دوه نوي خپلواک حکومتونه په خپلو کې سره یو شول.

د دیودتس دلړۍ واکمنۍ ډېر وخت پاینښت ونه کړ، له میلاد څخه ۲۲۰کاله مخکې د آی تیدیوم په نوم یو قوماندان دهغه پرضد پاڅون وکړاو د دیودتس دحاکمیت سلسلې ته یې دپای ټکی کېښود.

آی تیدیوم دباختر لومړنی پاچا وچې یوناني هنریې د هندترنیمې وچې پورې ورساوه. له آی تیدیوم څخه وروسته دهغه زوی دیمیتروس له میلاد څخه ۱۹۰کاله مخکې دهغه ځای ناستی شو، نوموړي تر خپلې ولکې لاندې سیموته پراخوالی ورکړ، د تاکسیلا، کاشیوار او موریاپته سیمې یې دهند ي پاچا هانوله واک څخه ووېستلې، دیمیتروس د خپلې د واکمنۍ په بیلابیلو سیموکې دنوو ښارونو دجوړولو کارپیل کړ، په اراکوزیاکې دکلات ښار، په سند اوهندکې سیالکوټ اوپټاله دهغه له څرګندو نښانو څخه ګڼل کیږي.

د آی تیدیوم دلړۍ وروستی حکمران دیمیتروس وچې دخپلو قوماندانانو له خوا یوتن چې ایوکراتید نومیده ماتې وخوړه، ایوکراتید دنوې واکمنۍ دلړۍ بنسټ کېښود.

## د (۱۱) لوست د تدریس لاربنود پلان

**د تدریس مهال: یودرسی ساعت(۴۵ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | دیونان- باختري مدنیت ځانګړتیاوې | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې دیونان- باختري مدنیت له ځانګړتیاوو سره بلد شي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- د دې دورې له فرهنګي ځانګړتیاوو سره به بلدشي،<br>- د دې دورې تاریخي ارزښت به وپیژني،<br>- هغه لاملونه چې د یونان- ختري مدنیت په وده او پراختیا کې یې ونډه درلوده تحلیل وکړای شي،<br>- دیونان- باختري فرهنګي مرکزونه به د نقشې په مخ وښودلی شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته بانـدې د لوسـت د سـرلیک لیکل،<br>- پـر تختـه بانـدې د مهمـو مطلبونـو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکـو ویشـل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کـورنی دنـدې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br><br>۱. مؤرخینـو لرغـونی افغانسـتان دپخوانیومـدنیتونو کـانون اودهغـوی دیوځـای کیدلو، دسوداګریزوچارو څلورلاری اودهغوی دتمدنونود ځانګو په نوم یـاد کړی دی.<br>۲. دیونان- باختري معمار یو د هنر د یوتربلو اغیـزو بیلګـه ځـای لرغـونی بګـرام دی چې دشتل او پنجشیر سیندونو دیوځای کېدلو په سیمه کې جوړ شـوی دی<br>۳. په افغانستان کې دیوناني د مجسمو جوړولـو هنرخپلـې اغیـزې درلـودلې، دې هنرپه افغانستان کې دافغاني هنرمندانوپه کوښښونو ډېرپرمختګ وکړ. | | |

**اضافي معلومات**

دمؤرخينو اوڅېړونکوله نظره پخوانی افغانستان یو ډېر ارزښتناک او دپام وړچاپریال ګڼل شوی دی. دانګلیس نامتومؤرخ(تاینبي) افغانستان دلرغونو مدنیتونو کانون (مرکز) اودهغوی دتلاقي(یوځای) کېدلوسیمه بللې ده، مګرجاپاني لرغون پیژندونکو (ماوریزاو یوتوزی)، لرغوني افغانستان ته دسوداګریزې څلور لارې نوم ورکړی دی، خو علامه حبیبي افغانستان په سیمه کې دتمدنونو زانګو ګڼلې ده.

د تاریخي مشهورو مدنیتونو له جملې څخه یو مدنیت چې په افغانستان اوسیمه کې دپیژندنې وړ و، دیونان–باختري مدنیت دی. یونان – باختري مدنیت په اصل کې د دووتمدنونو د یوځای کېدلو په نتیجه کې رامنځته شوی دی. له دې دوو مدنیتونوڅخه یو یې دیونانیانو په واسطه افغانستان اوسیمې ته رسېدلی دی او دویم یې د باختر دهغو اوسېدونکومدنیت دی چې دارایي لرغونو مدنیتونو پربنسټ یې پراختیا کړې وه، د دې دوو تمدنونو په یوځای کیدلو سره په افغانستان اوسیمه کې د یو نوي مدنیت بنسټ کېښود چې په تاریخ کې دیونان – باختري مدنیت په نوم وپیژندل شو.

افغانستان ته دسکندر مقدوني اویونانیانو په راتلو سره یو شمېر یوناني عالمان اوهنرمندان له هغوی سره سم په افغانستان کې استوګن شول چې دافغانستان دخلکو او اوسېدونکو په فرهنګ باندې یې ډېره اغیزه وکړه، دا یوه لویه پیښه وه چې دهیواد په ټولنیز نظام، تمدن او لرغوني فرهنګ کې رامنځته شوه.

یونانیانو له خپلو فتوحاتو سره سم خپلې مدني لاس ته راوړنې د خپل واک لاندې سیموته انتقالولې چې د هغو بېلګې دهغوی دواک لاندې په ټولو سیمو کې په ځانګړي توګه په لرغوني افغانستان کې څرګندې دي.

یوناني معمارانو به د نظامي هډو لپاره داسې ځایونه ټاکل چې دوو یا دریو خواوو ته به طبعي محافظت شتون درلود.

ددې ډول معماریو نمونې دافغانستان په بیلابیلو سیموکې لیدل کیږي، دبیلګې په ډول: د ای خانم لرغونی ښار چې دکوکچې او آمو سیندونو دیوځای کېدو په سیمه کې آباد شوی دی، همدارنګه دبګرام یوبل لرغونی محل چې ددې معماریو بیلګه ده چې دشتل اوپنجشیر دسیندونو د یوځای کېدو په سیمه کې جوړ شوی ده.

سربېره پردې په ای خانم کې د(کورنتین) شکله ستنو شتون پخپله دیوناني معمارۍ دصنعت د اغیزې اچولو بیلګه ده.

دیوناني هنردمجسمه سازۍ اوهیکل تراشۍ نمونو په لرغوني افغانستان کې دافغاني هنرمندانو د هلو ځلو اوکوښښونو په نتیجه کې ډېره وده اوپرمختګ وکړ. دغه هنردبامیانو دمجسمو په شتون سره د یو نړیوال فرهنګي میراث په توګه پیژندل شوی دی.

**د نورومعلومات لپاره لاندنیو منابعوته مراجعه وکړئ**


۱. افغانستان درمسیرتاریخ، میرغلام محمدغبار.
۲. تاریخ مختصر افغانستان، مرحوم عبدالحی حبیبي.

## د (۱۲) لوست د تدريس لارښود پلان

**د تدريس مهال: يودرسي ساعت (۴۵ دقيقې)**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | ای خانم | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د ای خانم له لرغوني سيمې سره بلد شي. | |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د ای خانم له لرغوني سيمې سره به بلد شي،<br>– د دې سيمې په ارزښت به پوه شي،<br>– د هيواد له تاريخي ځايونو سره به مينه پيدا کړای شي. | |
| **د تدريس لارې او طريقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضيح او تشريح، گروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندويه او اړين درسي توکي** | تخته، تباشير، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلايد، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طريقې** | تقريري، تحريري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعاليتونه او د انگيزې رامنځته کول** | **لومړني فعاليتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړينو توکو چمتو کول، د تير لوست ارزونه او د حاضرۍ اخيستل.<br><br>**د انگيزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او يا د يوه په زړه پورې تاريخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقيقو**<br><br>**۱۰ دقيقې** |

| منځنۍ او وروستۍ کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱. ای خانم ترکي نوم دی چې آی دمیاشتې اوخانم دښځې په نوم کارول کیږي چې دتخار ولایت دکوکچې او آمو سیندونو دیوځایی کېدلو په سیمې کې موقعیت لري.<br>۲. له ای خانم څخه د یونان- باختري دورې دمدنیت مسکوکات لاس ته راغلې دی. | | |

**اضافي معلومات**

د ای خانم د نوم ترکیب ترکي ریښه لري چې آی، دسپوږمۍ په معنا اوخانم، د ښځې په معنا ده، ای خانم یوه سیمه ده چې دتخارولایت دآمو اوکوکچې دسیندونو دیوه ځای کېدو په سیمه کې موقعیت لري، دیونان - باختري دولت له دفاعي ښارونو څخه پېژندل شوې ده چې دیو لوی دیوال په واسطه احاطه شوی چې اوږدوالی یې ۱۵۰۰متره او لوړوالی یې ۱۰متره ته رسېده. په اغلب ګمان سره دغه سیمه دآموسیند دشمالي سیمو دخلکو له خطرونو څخه دځان ساتلوپه منظور جوړه شوې وه، سربېره پر دې ای خانم یوه کرنیزه او ښیرازه سیمه وه چې دهغه ځای د اوسیدونکو اړتیاوې پوره کولې.
د ای خانم دښار دآبادولوپه هکله بشپړ معلومات په لاس کې نشته، خو داسې ویل کیږي چې ددې ښار بنسټ د مقدوني سکندر له خوا ایښودل شوی دی، دلرغوني یونان نومیالي عالم بطلیموس پخپلو اثاروکې د آمو اسکندریه یادونه کړې ده چې د اوسني ای خانم باندې دلالت کوي. همدارنګه په ځینو منابعوکې راغلي دي چې دا ښار دسلیکوس اودهغه د زوی انتیوکیوس له خوا جوړ شوی دی. د هغه وخت نامتو معمار(کنیاس) نامی چې ددې ښار په آبادۍ او جوړولو کې یې برخه اخیستلې وه، دنوموړي قبر دښار په دننه محوطه کې کشف شوی دی، ددې مقبرې دځنګ یوه کتیبه(لیکنه)هم لاس ته راغلې ده چې دتاریخ پوهانو اولرغون پېژندونکولپاره ډېر معلومات وړاندې کولای شي.
د ای خانم په لرغونې سیمه کې دلومړي ځل لپاره په ۱۹۴۶زیږدیزکال کې د شلمبرژه په نوم یوفرانسوي لرغون پېژندونکي کندنې وکړې. دنوموړي کندنو(حفریاتو) ثابته کړه چې نوموړی ښار دیونان اوباختري دلوی تمدن استازیتوب کوي. دا ښار له خامو خښتوڅخه جوړ شوی دی چې په ځینو ودانیوکې یې د اومو خښتو لاندې له پښوخښتو څخه کار اخیستل شوی دی، همدارنګه په نوموړو ودانیوکې دتزءین(ښکلا) اوهمدارنګه دځینو لویو ستنو(پایو) په جوړولوکې دتباشیرپه ډول اهکي تیږې هم کارول شوي دي، د ودانیو

په ستنو، دسالون په منځ اودعمده اتاقونو په فرش کې له تیرو څخه کار اخیستل شوی دی.
د ای خانم د دوو قبرونو په څېړنه کې دقبراود هغو دجوړښت په هکله پوره معلومات لاس ته راغلې دي.
له دې قبرونو څخه یو یې د دې ښار د بنسټ ایښودونکی(کنیاس) پورې اړه لري چې دښار په منځ کې کشف شوی دی. ترلاسه شوی جسد په نوموړي قبرکې له تزیین پرته د ډبرین تابوت په منځ کې ایښودل شوی دی، کوم شیان چې له دې قبرڅخه لاس ته راغلي دي، په لوی گمان ډبرین لوښي دي چې یوناني لوښوته ورته دي.

**د ډیرو معلوماتو په موخه لاندې منابعو ته مراجعه وکړئ**


**۱.** باستان شناسی مدنیت های اولیه افغانستان، رسول باوری.

# د (۱۲) لوست دتدریس لاربنود پلان

**د تدریس مهال: یودرسی ساعت (۴۵ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | ساکان | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د افغانستان په سویلي سیمو کې د ساکانو له واکمنۍ سره بلد شي. | |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د ساکانو او پارتیانو دواکـ لاندې سیمو سره بلد شي،<br>– دساکانو دواکـ لاندې سیمې دنقشې له مخې وښودلی شي،<br>– په زده کوونکوکې به د وطن دوستۍ روحیه پیاوړې کړي. | |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، گروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعالیتونه او د انگیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انگیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنی دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه ځارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱. دساکانولومړنی مرکز د افغانستان په سویل کې اراکوزیا (کندهار) سکستان (سیستان) و.<br>۲. دساکانو لومړنی واکمن هرایوس نومیده. | | |

**اضافي معلومات**

د یونانو- باختري پیر وروستنی واکمن هیلوکیلس و، نوموړی د یونانو- باختري امپراتورۍ په ټول قلمرو باندې واکمن و. له هغه څخه وروسته سیمه ییز واکمنان او حاکمان منځته راغلل چې هغوی هر یوه په وړه سیمه باندې حکومت کاوه. دې لړۍ له میلاد څخه وړاندې سل کاله دوام وموند، ددې مهال په اوږدو کې دلرغوني افغانستان په سویل اوسویل ختیځ سیمو کې ساکه یا ساکانو په نوم د نوې لړۍ واکمني پیل شوه.

ساکان له امو سیند څخه په تیریدو د درنګیانه په سیمې اوپه سکستان(سیستان) میشت شول. یوې بلې ډلې یې د هندوکش په شمال او باختر سیمو کې ژوند کاوه، له دې سیمې څخه یې سویل اولویدیځ ته مهاجرت وکړ.

د افغانستان په سویلي سیمو، لکه: اراکوزیا (کندهار) سګستان (سیستان) کې د ساکانو په نوم ځواکمن قوم د خپل حاکمیت بنسټ کېښود. د دغه قوم لومړنی واکمن د هرایوس په نوم پیژندل شوی چې هغه هم د باختري یونان د واکمنانو په شان په خپل نوم سکه جوړوله.

ساکانو په لنډه موده کې د خپلو نیول شوو سیمو لمن تر تاکسیلا، سند او د بلوچستان تر بولان پورې وغزوله، د باختري یونان د امپراتورۍ سویل او سویل ختیځې سیمې یې هم تر خپلې ولکې لاندې راوستې.

له هرایوس څخه وروسته مایوس له میلاد څخه مخکې په ۷۲ کال کې واک ته ورسید. هغه د خپلو سکو په مخ د شهنشاه کلمه ولیکله، د هغه د واکمنی د مهال یو لیک د لرغون پوهانو لاس ته رسیدلی او د یوې مسې ټوټې پر مخ لیکل شوی، په دې لیک کې له میلاده ۷۸ کاله وړاندې له یوناني او خروشتي رسم الخط څخه ګټه اخیستل روښانه کیږي.

**د ډیرو معلوماتو په موخه لاندې منابعو ته مراجعه وکړئ**

1. افغانستان درمسیرتاریخ، میرغلام محمدغبار.
2. باستان شناسی مدنیت های اولیه افغانستان، پوهندوي رسول باوری.

# د (۱٤) لوست دتدریس لاربنود پلان

د تدریس مهال: یودرسی ساعت (۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | دکوشانیانوامپراتوري | |
| عمومي موخه | زده کوونکی دي دکوشانیانود امپراتوری له څرنګوالي سره بلد شي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– دکوشانیانو له امپراتوري سره بلد شي،<br>– د کوشاني فرهنګ په خپریدو اوپراختیا کې د کوشاني سترو شاهانو په ونډه باندې به پوه شي،<br>– د وریښمو د لارې په اقتصادي ارزښت باندې به پوه شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنۍ او وروستۍ کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه نظارځارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداښت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱. د کوشانی امپراتورۍ بنسټ اېښودونکی کجولا کد فیسیس و.<br>۲. د رباطک کتیبه هغه ډېر لیک دی چې د ویماکدفیسیس پلار دکجولا کدفیسیس زوی ویماتکتو په واسطه لیکل شوی دی چې دویماتکتو دپیر استازی توب کوي.<br>۳. دکوشانیانونامتوچارواکې له کجولاکدفیسیس، ویماتکتو، ویماکدفیسیس، کنشکا، هوویشکاو او واسودیوا څخه عبارت دي. | | |

**اضافي معلومات**

دکوشانیانو نوم د کوشان له کلمې څخه اخیستل شوی دی. کوشان یو کوچی قوم و چې دآمو له سیند څخه راتېرشو اوپه بلخ کې یې یونان- باختري واکمني له منځه یوړه.

د کوشانی امپراتورۍ بنسټ اېښودونکی کجولا کد فیسیس دی. نوموړي مخکې له دی چې د پاچاهۍ اعلان وکړي، د خپل قوم مشري یې په غاړه درلوده چې د کوی شوانګ په نوم یادیږي، نوموړی په ۴۰ میلادي کال کې واک ته ورسید او تر ۸۰ میلادي کال پورې یې د لرغوني اریانا په ډېرو سیمو واکمنی وکړه. هغه د خپل سلطنت په پای کې د شهنشاه لقب تر لاسه کړ.

د کجولا کد فیسیس له مړینې وروسته د هغه زوی ویماتکتو واک ته ورسید. د دې شخص په اړه ډېر معلومات نشته. په دې اړه یوازینۍ لاسته راوړنه د رباطک ډېر لیک دی چې د ویماتکتو په واسطه لیکل شوی دی.

له ویماتکتو وروسته د هغه زوی ویما کدفیسیس واک ته ورسېد. نوموړي له میلاد څخه وړاندې تر ۱۲۷ کال پورې واکمني وکړه. ویما کدفیزیس د کوشانیانو لومړنی امپراتور و چې د هېواد پولې یې په سویل کې د هند د ګنګاه تر سیند پورې ورسولې. نوموړي د چین له هېواد سره ښې اړیکې ټینګې کړې او د روم د امپراتور تراخان دربار ته یې یو سفیر هم ولېږه او له هغه سره یې اقتصادي او سوداګریزې اړیکې ټینګې کړې.

له ویماکدفیسیس وروسته د هغه زوی لوی کنشکا واک ته ورسید. کنشکاه د افغانستان د لرغوني تاریخ یو ځواکمن امپراتور و او له ځانګړې شهرت څخه برخمن و،په ختیځ کې یې له چین او په لوېدیځ کې یې د روم له هېواد سره سوداګریزې اړیکې درلودې.

د کوشانیانو په دوره کې په تېره بیا د کنشکا په واکمنۍ کې د وربښمو مشهورې لارې نړیوال شهرت تر لاسه کړ.

# د (۱۵) لوست دتدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال: یودرسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

| **د مطلبونو سرلیکونه** | **د مطلبونو شرح** | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | بګرام د کوشاني سترې امپراتورۍ پلازمینه | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د بګرام د کوشاني سترې امپراتورۍ د پلازمینې په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- زده کوونکي به د بګرام د کوشاني سترې امپراتورۍ له پلازمینې سره پیژندګلوي پیدا کړي.<br>- د بګرام د کوشاني سترې امپراتورۍ د پلازمینې په اړه به معلومات وړاندې کړای شي.<br>- زده کوونکي به ومني چې له بګرام څخه لاس ته راوړل شوې اثار د کوشاني سترې امپراتورۍ د لوړوالي(عظمت) نښه ده. | |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، سترې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنی او وروستۍ کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه نظارځارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | **۳۵ دقیقې** |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱- په ۱۹۳۷ز کال کې په بګرام کې سروي تر سره شوه او له څیړنو څخه چې کومه پایله لاس ته راغله دا یې وښودله چې د بګرام مدنیت له سکندر څخه وروسته دی او د یونان د باختر له مهال سره تړاو لري.<br>۲- ودانۍ د یو منظم پلان له مخې جوړې شوي دي او د معماري د ځانګړتیاوو له مخې د یونان ښارونو ته ورته والی لري.<br>۳- له بګرام څخه په لوړه کچه د سرو زرو سکې، برونزي او عاجي آثار لاس ته راغلي دي. | | |

**اضافي معلومات**

له ۲۵/ تر ۱۴۴ ز (میلادي) کلونو پورې د کوشانیانو ستر امپراتور کنشکاه وکړای شول، د خپلې واکمنۍ حدودو تـه پراختیا ورکړي او د هغه د امپراتورۍ پولو داسې پراختیا درلـوده: ختیځې پـولې یـې د هنـد بنـارس تـه رسـیدې، پـه لویدیځ کې له پارتانو سره تړلې وې، په شمال کـې کاشـغر او یارکنـد د کوشـانیانو د امپراتـورۍ برخـه وه، چـین او ختن یې هم تر خپلې ولکې لاندې راوړل کنشکا په دوبي کې بگرام او پـه ژمـي کـې شاپور(پیښـور) خپلـه پلازمینـه ټاکلې وه.

بگرام د افغانستان له لرغونو ښارونو څخه و چې د کاپیس یا کاپیسا په نومونو هم یاد شـوی دی. فرانسـوي لرغونپـوه گریشمن په (۱۹۳۷ز) کال کې له یو لړ څیړنو څخه وروسته چې په بگرام کې یې تر سره کړې او د څیړنو لـه مخـې چې تر لاسه شوې، د نوموړې ښار په اړه یې داسې معلومات وړاندې کړل: کله چـې اسـکندر بگـرام تـه ورسـید یـو شمیر عسکر یې ناروغ شول. اسکندر په بگرام کې دمه وکـړه. د قفقـاز د اسـکندریې پـه نـوم یـې ښـار جـوړ کـړ او وروسته بلخ ته ولاړ، خو د ځینو افزارو او مسکوکاتو له څیړنو څخـه وروسـته چـې لـه بگـرام څخـه لاس تـه راغلـي داسې جوتیږي چې د دې ښار تمدن د یونانو باختري پیر سره تـړاو لـري. پـه هـر صـورت بگـرام د یـو ښـه موقعیـت لرونکی دی. د وریښمو نامتو لاره له هغه څخه تیریده چې د کابل له لارې له تاکسیلا سره یو ځای کېده.

د نوموړې ښار ودانۍ په منظم ډول دي او ننیو ودانیو ته ورته دي.

**متظرفه صنایع:** د عاج پر مخ کیندنې او نقاشي، د یوالونه او د ارباب الانواعو او مجسمو جوړول د کوشـاني عصـر د عالي هنر ښکارندوی دی. له ۱۹۳۹ تر ۱۹۴۰ کلونو پورې له بگرام څخه قالبونه لاس ته راغلې چې د هغو پـه واسـطه د سرو زرو او سپینو زروگانې جوړیدلې.

**نساجی:** د کارگاه وو په واسطه د البسو لپاره ټوټې اوبدل کیدې چې نوموړې کار گـاه وې لـه لرگیـو او خټـو څخـه جوړې شوې وې او د غالۍ او ټغرو او بدلو صنایع هم په بگرام کې دود وې.

**سوداگري:** د بگرام ښار د یونان- باختري له نامتو ښارونو څخـه و چـې لـه تاکسـیلا سـره یـې سـوداگریزې اړیکـي درلودې. هندې توکي بگرام ته واردیدل.

**عقاید:** مخکې له دې چې خلك بودایي آیین تـه واوړي یعنـي د سـترو کوشـانیانو د امپراتـورۍ لـه جوړښـت څخـه وړاندې خلکو هلته ارباب الانواع، لکه: (اناهیتا او میترا) لمانځل.

## د (۱٦) لوست دتدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال: یودرسي ساعت (۴۵ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | هډه د کوشاني امپراتوری فرهنگي پلازمینه(مرکز) | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي به د کوشاني امپراتوري د فرهنگي مرکز په هکله معلومات تر لاسه کړي. | |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- د هډې په هکله به چې د کوشاني امپراتوری فرهنگي مرکز و، پیژندگلوی تر لاسه کړي،<br>- د کوشاني امپراتوری د فرهنگي مرکز(هډې) په هکله به معلومات ورکړای شي،<br>- هغه پاتي شونې چې له هډې څخه لاسته راغلی، د گندهارا د تمدن یوه برخه ده. زده کوونکي به د هغه په ارزښت پوه شي. | |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، گروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعالیتونه او د انگیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انگیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه نظارځارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱- افغانستان ختیځې برخې تر شمالي هند پورې د ګندهارا د حوزې په نوم یادیږي چې له جلال آباد، کنر، پیښور او سوات څخه عبارت دي. هډه د ننګرهار په دولس کیلو مترۍ کې یوه پرته سیمه ده چې له هغې څخه ډیر زیات شمیر فرهنګي پاتي شونې آثار لاسته راغلي دي چې د هغو په مطالعې سره به د افغانستان د لرغوني تاریخ ډیرې برخې روښانه شي.<br>۲- د لاندنې دلایلو له مخې هډه، لومړنی ګټور لامل د اغیزمنو شرایطو او امکاناتو شتون چې د کنشکا لخوا چمتو شوی و، دویم د بودیزم په کیش کې نوښتونه او بدلونونه او دریم د ګندهارا د وګړو فکري ذکاوت او ظرافت. | | |

**اضافي معلومات**

د لرغوني افغانستان ختیځې برخې د هند تر شمال سیمو پورې چې ننګرهار، کنر، پښور او سوات پکې شامل دي د ګندهارا په نوم یادیږي او د هډې فرهنګي ښارګوټی د ننګرهار په دولس کیلومترۍ کې پروت دی.
چیني زایر هوان تسانګ له هډې څخه لیدنه کړې او په خپل لیک کې یې له هډې څخه د هیلو په نوم یادونه کړې ده او داسې لیکي چې د هډې ښار ډیر لوی او ښیرازه دی او د تپه سرخ، تپه شتر، شاه خیل غونډۍ، تپه خمزاد په نومونو لرغوني معابد پکې شتون لري. په همدې توګه یې په ننګرهار کې د شایستې په نوم د یوې استوپې څخه یادونه کړې ده او هم یې له یوې مغارې څخه یادونه کړې ده چې هلته د بودا سورې پکې و، خو نن هغه له منځه تللی دی.
د هډې ښار د ډیرې لویې ودانۍ او برجونو لرونکي و چې یو وخت باختري او هخامنشي واکدارانو پکې ژوند کاوه. سپین غر چې د هډې په سویل کې پروت دی، د خپلو سړو بادونو په وسیله یې هډه د ژوند لپاره تیاره کړې وه. د زیاتو اوبو لرونکي سیمه وه چې ځمکې یې د حبوباتو د کرنې لپاره چمتو وې، هډه له ساختماني پلوه په پنځو دورو ویشل کیږي. د څلورمې او پنځمې دورې په ترڅ کې بودايي کیش خپل لوړ پوړ ته ورسید. د پنځمې دورې په وروستیو کې د یفتلیانو واکمنې هلته تر سترګو کیږي، ځکه چې د دوی مړې د هډې په مغارو کې خاورو ته سپارل شوي دي. په دریمه او څلورمه دوره کې لویې ودانۍ جوړې شوې چې سنګ کارۍ یې د چونې پواسطه انګاف شوي دي. د ستراتیګرافی د علم پر بنسټ په څلورمه او پنځمه دوره کې د مجسمو په جوړولو کې له ګچ کارۍ او ملمع کارۍ څخه ګټه پورته شوې وه.
د دویمې او دریمې دورې په لومړیو کې د مجسمو په جوړولو کې د قالب ګیرۍ او د مفرغي مجسمو قالب ریزي هم منځ ته راغله. په ګندهارا کې د یوناني هنر او د یوناني او بودايي هنر ترکیب په څرګند ډول لیدل کیږي. له دغو منقولو اثارو څخه یو شمیر د کابل موزیم ته د لیدنې او کتنې لپاره راوړل شول، خو په خواشینۍ سره چې دغه اثار د دیرش کلنو جګړو په ترڅ کې له منځه تللي دي.

## د (۱۷) لوست دتدریس لاربنود پلان

**د تدریس مهال: یودرسی ساعت (۴۵ دقیقې)**

| **د مطلبونو سرلیکونه** | **د مطلبونو شرح** | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | بامیان د کوشاني امپراتورۍ عقیدتي مرکز | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دي د کوشاني امپراتورۍ د عقیدتي مرکز (بامیان) په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د بامیانو د کوشاني امپراتورۍ له عقیدتي مرکز سره به پیژندګلوي پیدا کړي.<br>– د بامیانو د کوشاني امپراتورۍ د عقیدتي مرکز په اړه به معلومات وړاندې کړای شي.<br>– د بودیزم د آیین په خپریدو او پراختیا کې د بامیانو په رول باندې پوه شي. | |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنۍ او وروستۍ کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل، - پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل، - د لوست تشریح او توضیح، - په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل، - پوښتنو ته ځواب ورکول، - د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل، - د تدریس په وخت کې ښه نظارځارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول، - د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت، - په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول، - د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول، - په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول، - د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه** ۱- الفورد فوشه فرانسوي لرغون پوه په خپلو څېړنو کې جوته کړه چې د بودا سترې مجسمې صلصال او شمامه په څلورمې او پنځمې زیږدیزې پیړیو کې جوړې شوي دي. ۲- مخکې تر دې چې کنشکاه بودایي آیین ته واوړي، نوموړی آیین د هند په اړوندو سیمو کې یو غلی او بې حرکته آیین و چې له بامیانو څخه وروسته نورو سیمو ته خپور شو. | | |

**اضافي معلومات**

بامیان د هندوکش د غره لویدیځ لور ته د فرعي لمنو په منځ او د بابا غره چې کابل، پروان، ارزګان، غور او غزني ولایتونو تر منځ پروت دی. په پهلوي سرچینو کې د بامیکان او په چینایي سرچینو کې د فان، بان په نومونو یاد شوی. په بامیانو کې د (ګوریک بودیک) آثار چې له انځورونو او پیکرونو څخه عبارت دي، د غرونو په دیوالونو(جدارونو) کې جوړ شوې چې د (جدار کبیر) په نامه یاد شوي دي. چې دا جدارونه هماغه رسوبات دي او په دویم او دریم جیولوجیکي پیر کې منځ ته راغلي، له ۷۰ څخه تر ۹۰ مترو پورې لوړوالی لري، دوه سترې مجسمې چې ۳۸ او ۵۵ متره لوړوالی لري، د بامیانو د نامتووالي لامل ګرځیدلې دي.
د بامیانو په شاوخوا سیمو کې نورې مجسمې هم جوړې شوي چې هریوه یې جلاجلا سمڅې او معابد لري. په نوموړو معبدونو کې طاقچې موجودې دي چې په هغو کې انځورونه تر سترګو کیږي. د بامیانو په نورو سیمو کې هم لرغوني آثار لاس ته راغلي چې د غلغلې او ضحاک ښار، اژده های سرخ دره ، ککرک دره، فولادي، آهنګرانو دره او له بند امیر څخه عبارت دي.

## د (۱۸) لوست دتدریس لاربنود پلان

**د تدریس مهال: یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)**

<table>
<tr><th>د مطلبونو سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو شرح</th></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">کیداریان یا کوچني کوشانیان</td></tr>
<tr><td>عمومي موخه</td><td colspan="2">زده کوونکو دې د کیداریانو یا کوچني کوشانیانو په اړه معلومات لاسته راوړي.</td></tr>
<tr><td>پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې</td><td colspan="2">زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د کیداریانو یا کوچنیو کوشانیانو له دولت سره به بلد شي.<br>– و به کولای شي چې د کیداریانو یا کوچني کوشانیانو د دولت په اړه معلومات وړاندې کړي.<br>– د کوچني کوشیانیانو او سترو کوشانیانو ترمنځ دي سیاسي او فرهنګي تفاوتونه پرتله کړای شي.<br>– د افغانستان د لرغوني تاریخ له مطالعې سره دي لوالتیا پیدا کړي.</td></tr>
<tr><td>د تدریس لارې او طریقې</td><td colspan="2">پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه.</td></tr>
<tr><td>مرستندویه او اړین درسي توکي</td><td colspan="2">تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور...</td></tr>
<tr><td>د ارزونې طریقې</td><td colspan="2">تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ...</td></tr>
<tr><td rowspan="2">لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول</td><td rowspan="2">لومړني فعالیتونه<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>د انګیزې رامنځته کول<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول.</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
</table>

| منځنۍ او وروستۍ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| کړنې (فعالیتونه) | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه نظارځارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱- د کیداریانو لومړنی پاچا یو کیداري شاه زاده و چې (کیدار) نومیده.<br>۲- د کوچني کوشانیانو او ساسانیانو تر منځ اړیکي ښې نه وي د دوی ترمنځ جګړو او مخالفتونو اته کاله دوام وکړ او د یوې جګړې په ترڅ کې ساسانیانو د کیداریانو له خوا ماته وخوړه.<br>۳- کنکاش، پیرو او بهرام. | | |

**اضافي معلومات**

په ۲۲۰ زیږدیز کال کې د کوشانیانو لویه امپراتوری له ماتې سره مخ شوه. د کوشانیانو تر له منځه تللو وروسته مرکزي دولت له منځه ولاړ. د اریانا په ختیځ او د سند په پورې غاړه په هر ولایت کې یو شمیر والیانو د واک چارې په لاس کې ونیولې، خو د اریانا په لویدیځ کې د پارتیا او سیستان ولایتونه د ساسانیانو لاس ته ورغلل یواځې د اریانا په مرکز کې یعني د هندوکش په شمال او سویل کې دوه کوچني حکومتونه چې یو یې په باختر او بل یې په کابل کې پاتې شوی و د کوچنیو کوشانیانو په نامه یادیدل.
د کیداریانو پاچا کیدار نومیده نوموړی د دغې لړی بنسټ ایښودونکي و چې د یوې پیړۍ په موده کې یې د باختر په سیمه کې حکومت وکړ. کیداریانو له دریمې پیړۍ څخه د څلورمې پیړۍ تر لومړیو پورې د دوو پیاوړو (یفتلي او ساساني) ځواکونو په وړاندې په ډیره میړانه دفاع وکړه. کابو د یوې پیړۍ په موده یې خپل شتون خوندي کړی و.
د ساسانیانو پاچا فیروز شاه د کیدار له حکومت څخه د باج غوښتنه وکړه، خو هغوی ونه منله او د ساسانیانو په وړاندې مقابلې ته راپورته شول. له کیدار څخه وروسته زوی یې ګنګهاس واک ته ورسیده چې د کیداریانو د واکمنۍ په ساتلو او د لویو کوشانیانو د امپراتورۍ په له منځه تللو کې یې اړین رول لوبوه. د زیږدیزې پنځمې پیړۍ په لومړي سر کې کله چې یفتلیان د باختر سیمې ته ورسیدل، کیداریان د ساسانیانو د جګړې په مهال کې د هندوکش څخه تیر شول او د کابل د کوشانیانو سره یو ځای شول او په دې توګه د لویو کوشانیانو وروستني پاتې شوني پای ته ورسیدل.
د کوچنیو کوشانیانو سیمې تر بامیانو پورې محدودې وې سره له دې چې د اریانا او کوشانیانو د دریمې پیړۍ تاریخ تیاره دې خو دومره ویلی شو چې د کوچنیو کوشانیانو ځواکمني تر پنځمې زیږدیزې پورې یې دوام وکړ او د دوی حکومت د یفتلیانو په لاس پای ته ورسیده.

**د نورو معلوماتو د ترلاسه کولو په موخه دې افغانستان**

- در مسیر تاریخ، میرغلام محمد غبار ته مراجعه وشي.

## د (۱۹) لوست دتدریس لارښود پلان

د تدریس مهال: یودرسی ساعت(۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د یفتلیانو امپراتوري | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د یفتلیانو د امپراتورۍ په اړه معلومات لاس ته راوړي | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- د یفتلیانو د امپراتورۍ د تشکیل او له منځه تلو له څرنګوالې سره بلد شي.<br>- وکولای شي چې د یفتلیانو د امپراتورۍ په اړه معلومات وړاندې کړي.<br>- د افغانستان د لرغوني تاریخ له مطالعې سره لیواله شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرگندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولگي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولگي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱- یفتلیانو له منځنی اسیا څخه د سویل خواته کډه وکړه او په کال ۴۲۵ زیږدیز کې یې د خپل لومړني حکومت بنسټ په تخار کې کیښود.<br>۲- اخشنور د یفتلیانو له مشهورو پاچایانو څخه و او ساساني پاچا فیروز شاه ته ماتې ورکړه او فیروز شاه د ځان د خلاصون لپاره خپل زوی قباد د گروگان په توگه د اخشنور دربار ته ورکړ او د یفتلیانو باج ومانه.<br>۳- تورمنه د اخشنور زوی وو چه پخپل مسکوکاتو کې ځان د زابل امپراتور یاد کړی ده او د هغه د واکمنۍ سیمې تر منځنی هندوستان پورې رسیدې. | | |

**اضافي معلومات**

د یفتلیانو د امپراتورۍ جوړښت په لومړیو کلونو کې د اریانا په خاوره او د هغې په ختیځ کې ځینې بدلونو نه رامنځته شول. لکه څنگه چې د څلورمې زیږدیزې پیړۍ په وروستیو او د پنځمې پیړۍ په پیل کې د کوشانیانو امپراتورۍ کمزورې شوه او د دوی اخلافو په شمالي او سویلي هندوکش کې د ځایي واکمنانو په توگه خپل ژوند ته ادامه ورکړه. په ختیځ کې د هندوستان گوپتایان پیاوړي شول او هلته کوشاني واکمنانو پرله پسې ماتې و خوړلې. شمالي کیداریانو د ساسانیانو د یرغل پر وړاندې سویل خواته شاتگ وکړ او یواځې کیداریانو په کابل کې خپل شتون په یوې کوچنۍ سیمه کې وساته. باید وویل شي چې دغو بدلونونو تر یوې اندازې پورې د یفتلیانو د امپراتورۍ د جوړښت زمینه برابره کړه.

یفتلیان د یوچیانو یا د کوشانیانو یوه څانگه و چې په چین کې د (ایپتات)، په کوریا کې (یپتل) په روم کې (افتهالي) او په فارس کې د (هیطل) په نومونو یاد شوې دي د ۴۲۰ زیږدیز کال په شاوخوا کې یې د جیهون د کینې څنډو (سواحل) ته مهاجرت وکړ او په ۴۲۵ زیږدیز کال کې د هغوی لومړنۍ پاچا(افتالینوس) شاهي تاج په خپل سر کیښود. د هغوی واکمنۍ سیمه د جیهون دوو لورو ته له تخارستان څخه تر مروې پورې وه. د مرغاب په سیمه کې افتالینوس د بهرام گور په وړاندې ماته وخوړه، خو وروسته د یفتلیانو یو بل پاچا مهر پور وکولای شول چې د لویدیځ ځینې برخې بیا لاسته راوړي.

د یفتلیانو یو نامتو پاچا اخشنور په ۴۶۰ زیږدیز کال کې واکمني درلوده چې د هغه د واکمنۍ سیمه تر هرات پورې

رسیدله. له ساساني پاچا فیروز شاه سره یې جګړه وکړه او فیروزشاه له ماتې وروسته اسیر شو او خپل زوی قباد یې اخشنور ته د ګروګان په توګه پرېښود او د یفتلیانو د حکومت باج یې ومانه. دوه کاله وروسته د ساسانیانو نفوذ په لویدیځ او د هیرمند په سیمه کې ډېر شو او د سیمه ییزو کیداریانو څواکمني په کابل او ځینو ولایاتو یې له منځه لاړه او د یفتلیانو لویه او پراخه څواکمني منځ ته راغله.

له اخشنور وروسته د هغه زوی (تورامانا) واک ته ورسید او په هندوستان کې یې ډېرې سیمې لاس ته راوړې. لکه څنګه چې د تورامانا کتیبې په هندوستان کې له (سکر، کورا او ګوالیار) څخه لاس ته راغلې دي، او بیا د هغه زوی (مهراکولا) واک ته ورسید، هغه وتوانید چې د ګوپتا حکومت ته ماته ورکړي. وروسته د ګوپتا حکومت په حکومتونو وویشل شو. خو سیمه ییز حکومتونه د یووالي په لټه کې ووتل او یو شمیر جګړې د ګوپتا او یفتلیانو په منځ کې پیل شوې. په ۵۲۸ زیږدیز کا ل کې (مهراکولا) په یوه جګړه کې ماته وخوړه او د مهراکولا له مړینې وروسته په ۵۴۰ زیږیز کې په افغانستان کې سیمه ییز حکومتونه منځ ته راغلل چې په پای کې د یفتلیانو امپراتوري له منځه لاړه.

# د (۲۰) لوست دتدریس لاربنود پلان

د تدریس مهال: دوه درسی ساعتونه (۹۰ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د اسلام د سپیځلی دین د خپریدو په درشل کې د افغانستان عمومي اوضاع | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د اسلام د سپیڅلي دین د خپریدو په درشل کې د افغانستان د عمومي اوضاع په هکله معلومات لاس ته راوړي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د اسلام د سپیڅلي دین د خپریدو په درشل د افغانستان له عمومي اوضاع سره بلد شي،<br>– د اسلام د سپیڅلي دین د خپریدو په درشل کې د افغانستان د عمومي اوضاع په هکله معلومات وړاندې کړي.<br>– د اسلام سپیڅلي دین سره مینه پیدا کړي.<br>– د اسلام د سپیڅلي دین د تاریخ له مطالعې سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | توضیحي، تشریحي، لکچر او مباحثه وي. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، قلمونه او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، سوال او ځواب، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړنی فعالیتونه:**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول:**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**لس دقیقې** |

| منځنۍ او وروستي کړنې | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | پنځه دیرش دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱- د افغانستان اوضاع له سیاسي پلوه کړکیچنه وه. د دوو قوي دولتونو، ( په ختیځ کې د هندوستان ګوپتایانو او په لویدیځ کې ساسانیانو) د افغانستان په کورنیو چارو کې لاس وهنې وکړي چې د مرکزي دولت د له منځه تللو لامل شوې او ملي اقتصاد ته زیان ورسید.<br>۲- له دیني پلوه د افغانستان خلکو په ډیر شمیر کیشونو باندې اعتقاد درلود او د خلکو کلتور پر ویدې او اوستایي تهذیبونو باندي ولاړ و.<br>۳- د ساسانیانو وروستنی پاچا، دریم یزدګرد نومیده. | | |

**اضافي معلومات**

د افغانستان سیاسي، اقتصادي او ټولنیزه اوضاع د اسلام د سپیڅلي دین د خپریدو په درشل کې، د یفتلیانو د امپراتورۍ له منځه تللو وروسته بې ثبات شوه او د پردیو حکومتونو د لاس وهنې لپاره لاره هواره شوه، څرنګه چې په لویدیځ کې ساسانیانو، په شمال کې د ماورالنهر ترکانو او ختیځ کې ګوپتایانو پر افغانستان یرغل وکړ او افغانستان یې ونیوه او په نورو پاتې سیمو کې ملوك الطوایفي منځ ته راغله او یو شمیر ځایي حکومتونو، لکه: ( شاران ) په غور، (شیران) په بامیان، (رتبیلان) په کابل او (لاویکیان) په غزني او ګردیز کې منځ ته راغلل.

**اقتصاد:** په افغانستان کې د مرکزي حکومت نشتوالي، کړکیچنې وضعې په هر سکتور کې اقتصاد ته زیان رسولی و، د بیلګې په توګه سوداګریزې قافلې چې له چین څخه هند، ایران، عراق، ترکیې، ختیځ او لویدیځ روم ته د توکو د لیږلو په موخه د افغانستان له لارې تیریدلې چې دغه لاره د وریښمو د لارې په نامه یادیده چې د هغې ترانسپورتي عواید د افغانستان په اقتصاد کې له ډیر ارزښت څخه برخمن وو، له ستونزو سره مخامخ شوه.

د اقتصاد بل سکتور کرنه وه چې په تیره زمانه کې یې د خلکو اړتیاوې پوره کولې، خو د بهرنیانو د تیری او ولکې په وخت کې د محصولاتو کچه ټیټه شوه چې په ټولنه کې د مالي او اقتصادي رکود د منځته راتللو لامل وګرځید.

**دین او عقاید:** دین او عقاید چې په ټولنه د وحدت یو قوي عامل شمیرل کیږي، د اسلام د سپیڅلي دین د خپریدو په درشل کې د خلکو له ملاتړ څخه برخمن نه و او په ټولنه کې یې خپل موقف له لاسه ورکړی و. چې پخپله د

يووالي د له منځه تلو او د بې اتفاقي د رامنځه کېدو لامل وګرځېد. لکه څنګه چې د هيواد لويديځې برخې د ساسانيانو تر سياسي او کلتوري اغيزې لاندې وې چې دوی د زردشتي ايين پيروان وو، خو په منځنيو سيمو کې، لکه: زابلستان، د کابل وادی «ګندهارا»، له ارغنداب څخه تر هندوکش پورې سيمی شمالي سيمو او د سند په غاړو کې بودايي او برهمني آيينونو رواج درلود. د لمر او د بتانو لمانځنې هم په ځينو برخو کې شتون درلود.

**ژبه:** د جغرافيايي وضعيت له نظره افغانستان له ډيرو لوړو غرونو، درو او ميرو څخه جوړ شوی دی. هره دره او ميره يې د ځانګړې ژبې او لهجې لرونکي وه، لکه څنګه چې د اسلام د سپيڅلي دين د خپريدو په لومړي سر کې د افغانستان خلک په دري، پښتو، تخاري يا سانسګرت او نورو ژبو خبرې کولې.

په داسې شرايطو کې د اسلام غړ زموږ هيواد ته راورسيد او ټولنه د يو بدلون د قبليدو لپاره تياره وه او هغه دين چې ټول خلک يې د يو خدای لمانځنې، يووالي، خپلواکی، عدالت، مساوات او ورورولی ته بلل. د اسلام د سپيڅلي دين مجاهدين د حضرت عمر فاروق(رض) د خلافت په مهال کې ( ۲۲ هـ / ۶۴۳ زيږديز کال ) زمونږ د هيواد لورې ته راورسيدل او د اسلام د سپيڅلي دين په خپريدلو يې پيل وکړ.

**د لا زياتو معلومات د ترلاسه کولو په موخه**

- د افغانستان در مسير تاريخ ميرغلام محمد غبار اثر ته مراجعه وشي.

## د (۲۱) لوست دتدريس لاربنود پلان

**د تدريس مهال: يودرسی ساعت(۴۵ دقيقې)**

| **د مطلبونو سرليکونه** | **د مطلبونو شرح** | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د تمدن د منځته راتلو څرنگوالی او د هغه ځانگړتياوې. | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د تمدن د منځ ته راتلو د څرنگوالي او د هغه د ځانگړتياوو په اړه معلومات لاس ته راوړي. | |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د تمدن د منځته راتلو له څرنگوالي او د هغه له ځانگړتياوو سره به بلد شي،<br>– د تمدن د منځته راتلو د څرنگوالي او د هغه د ځانگړتياوو په اړه به معلومات وړاندې کړای شي،<br>– د تمدن د منځته راتلو د څرنگوالي اغيزه د انسانانو په ژوند کې احساس کړي. | |
| **د تدريس لارې او طريقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضيح او تشريح، گروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندويه او اړين درسي توکي** | تخته، تباشير، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلايد، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طريقې** | تقريري، تحريري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعاليتونه او د انگيزې رامنځته کول** | **لومړني فعاليتونه**<br>سلام اچول، ستړې مشي، د لوست د اړينو توکو چمتو کول، د تير لوست ارزونه او د حاضرۍ اخيستل.<br><br>**د انگيزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او يا د يوه په زړه پورې تاريخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقيقو**<br><br>**۱۰ دقيقې** |

| منځنی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنی دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې نظارځارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست دمتن پوښتنوته ځوابونه**<br>۱- پر له پسې ستونزو انسانان دې ته اړ کړل چې د خپلو هڅو په پایله کې ننني تمدن منځ ته راوړي.<br>۲- پوهان په دې عقیده دي چې د تمدنونو سرچینه یوه نه ده مګر د هرې سیمې، او ځای شرایط د تمدن د منځته راتلو او پراختیا لامل ګرځي. | | |

**اضافي معلومات**

د بشر اوسني تمدن ډول ډول پړاوونه تیر کړي دي او په تدریجي توګه منځ ته راغلی دی. لومړنیو انسانانو په غرونو کې د سوړو له ژوندانه (مغاره نیشنې) وروسته د خپلې تغذیې په موخه د وحشي ځارویو د ښکار لپاره په ډیرو ساده افزارو سره وادي ګانو ته مخه وکړه او د لومړي ځل لپاره یې د غلو په کرنه لاس پورې کړ.

له تودوخې او سړو او د ژویو له خطر څخه د ځان ساتنې لپاره ځانو ته ساده کورونه جوړول. او دا مرحله د ښاري ژوند پیل و چې ورو ورو د ښارونو د وګړو شمیر ډیر شول او خلك په دې اند شول چې د ټولنیز نظم او امنیت د ټینګولو لپاره اداري مرکزونه او حکومت جوړ کړې او د زرو کلونو په تیریدو او د ډیرو هڅو په کولو سره یې د خپلو ستونزو د له منځه وړلو، د اړتیاوو د پوره کولو او ځایې ستونزو د مخنیوی لپاره یې د هنر، فنونو او مهارتونو ته لاس رسی پیدا کړ.

تمدن د بشر د مادي او معنوي د لاسته راوړنې ټولګه ده چې په ټولنه کې د پوهي او هنر په برخو کې دغه فکري او فرهنګي وده د پرمختګ نښه بلل کیږي.

د ډیرو معلوماتو لپاره دې د میر غلام محمد غبار اثر ته رجوع وشي.

# د (۲۲) لوست د تدریس لاربنود پلان

**د تدریس مهال : یو درسی ساعت (۴۵ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د بین النهرین تمدن | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د بین النهرین د تمدن په هکله معلومات لاس ته راوړي. | |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- په ختیځ کې د بین النهرین له تمدن سره د زده کوونکو بلدتیا،<br>- د بین النهرین د تمدن د پیدایښت لاملونه فهرست وکړای شي،<br>- په ختیځ کې د بین النهرین د تمدن ارزښت او اهمیت احساس کړای شي. | |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضری اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنۍ او وروستۍ کړنې | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| (فعالیتونه) | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د بین النهرین لرغونی تمدن د (سومر) په نامه یادیږي. مورخین د هغه د رامنځ ته کیدلو لامل د دوو سیندونو سواحل (دجله او فرات) چې د خوړو او ډیرو اوبو درلودونکي وو ، ګڼي.

۲- د سومریانو ښارونه د سومر په سیمه کې رامنځ ته شوې وو، له هغو ښارونو څخه د اور، اورک، کیش لاګاش، لارسا او وینپور نومونه یادولای شو. دغه ښارونه په خپلواکه توګه اداره کېدل.

۳- د ګوتي یانو د واکمنۍ له پای ته رسیدو څخه وروسته، سومریان او اکدي یان یو له بل سره یو ځای شول او د اور په نامه حکومت یې جوړ کړ.

۴- حمورابي د بابلیانو د امپراتورۍ له نامتو واکمنانو څخه و، دی وتوانیده چې د بین النهرین یوالی تامین کړي او د خپلې واکمنۍ سیمې ته پراختیا ورکړي. د یوې لرغوني امپراتورۍ بنسټ یې کېښود چې پلازمینه یې د بابل ښار و. سر بیره پر دې کرنې او سوداګرۍ ته یې پراختیا ورکړه او هم یې د حمورابي قانون په نامه یوقانون جوړ کړ.

**اضافي معلومات**

دوه سیندونه (دجله او فرات) د اسیا د وچې په سویل لویدیځ (اوسنی عراق) کې موقعیت لري، دغه دوه سیندونه د قفقاز له غرونو څخه سرچینه اخلي او د پارس په خلیج کې تویږي. بین النهرین یوه ښیرازه سیمه وه او هغه خاوره چې د دجله او فرات سیلابونو له ځان سره راوړله، د دې سیمې په حاصلاتو کې یې زیاتوالی راوسته. په بین النهرین کې بیلابیل تمدنونه، لکه: د سومریانو، کلدانیانو، بابلیانو او د آشوریانو تمدن یو د بل پسې رامنځ ته شوي دي. له میلاد څخه څلور زره کاله د مخه په سویلي بین النهرین کې خلکو د غونډیو په سر ژوند کاوه چې د سیلابونو له خطر څخه خوندي اوسي.

په سویلي بین النهرین کې د دې سیمې لومړنۍ تمدن منځ ته راغلی دی چې د سومر د تمدن په نامه او خلک یې سومریانو نومیدل. سومریانو په لومړي سر کې په ختیځو کورونو کې ژوند کاوه او په ښکار، کبان نیولو، کرنې او مالداری باندې بوخت وو او له دې لارې یې خپل ژوند پر مخ بیوه.

# د (۲۲) لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال : یو درسی ساعت (۴۵ دقیقې)**

| **د مطلبونو سرلیکونه** | **د مطلبونو شرح** | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د بین النهرین تمدن او کلتور | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د بین النهرین د تمدن او کلتور په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د بین النهرین له تمدن او کلتور سره بلد شي،<br>– د بین النهرین د تمدن او کلتور د څرنګوالي په اړه به نورو ته خپل معلومات وړاندې کړای شي،<br>– په ختیځ کې د بین النهرین د تمدن او کلتور عظمت تحلیل کړای شي. | |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br><br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنۍ او وروستۍ کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
| --- | --- | --- | --- |
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- په بین النهرین کې علومو او په ځانګړې توګه د نجوم علم(ستوري پیژندنې) ډیر پرمختګ کړی و، د دې دلیل د ستورو لمانځنه وه، په همدې توګه د هندسې او ریاضي علومو په برخه کې لومړني فعالیتونه رامنځته شول او ورپسې د ښوونې په برخه کې د جمعې او منفي، ضرب او تقسیم عملیې راڅرګندې شوې.

۲- د بابل ښار د بین النهرین د لرغونو ښارونو له ډلې څخه و او په نړۍ کې لومړنی ښار شمیرل کیږي. د مورخینو په اند د دې ښار تاریخي قدامت له میلاد څخه وړاندې ۴۰۰۰ کالونو ته رسیږي ، د بابل ښار د حمورابي د واکمنۍ په مهال ډیر پرمختګ وکړ چې د فرات د سیند په څنډه پروت دی، د دې ښار پرخوالی ۵۲۰ کیلو متره مربع اټکل شوی دی.

**اضافي معلومات**

د بین النهرین د تمدن او کلتور بنسټ د سومریانو په واسطه له میلاد څخه وړاندې د ۴۰۰۰ کالونو په شاو خوا کې کېښودل شو. وروسته اکادیانو، بابلیانو او اشوریانو په خپل وار سره د دې تمدن او کلتور په پراختیا کې ونډه واخیستله. د بین النهرین تمدن او کلتور له دې امله زیاد ارزښت لري چې نه یواځې یې د لومړي ځل لپاره د علومو د رامنځ ته کیدو او پراختیا په برخه کې ګامونه پورته کړل، بلکې د فینقي، فلسطین، فارس او یونان هیوادونو ته علوم خپاره کړل. په همدې توګه د بین النهرین تمدن د یونان له لارې روم او نورو اروپایي هیوادو ته خپور شو.

**د لا زیاتو معلوماتو لپاره لاندنیو منابعو ته مراجعه وکړئ**


۱- تمدن مغرب زمین، محمد حسین آریا.

۲- نګاهی به تاریخ جهان، جواهر لعل نهرو.

۳- تاریخ بشریت، پوهنمل محمد رحیم روهین.

## د (۲٤) لوست د تدریس لاربنود پلان

د تدریس مهال : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د مصر تمدن | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې په ختیځ کې د لرغوني مصر د تمدن په اړه معلومات لاس ته راوړي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د لرغونی مصر له تمدن سره د زده کوونکو بلدتیا،<br>– د لرغونی مصر د تمدن د رامنځ ته کیدو لاملونه او د مصر تاریخي دورې بیان کړای شي،<br>– د مصر د تمدن عظمت دي تحلیل کړای شي او د مصر له پرمختګ او ودې سره به مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>۱۰ دقیقې |

| منځني او وروستي کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- له میلاد څخه ۳۲۰۰ کاله وړاندې هم مهاله د مصر دوو (سویلي او شمالي) حکومتونو په یووالي سره په مصر کې یو مرکزي حکومت د لومړي مینز په واسطه رامنځ ته شو.

۲- مورخینو د لرغوني مصر تاریخي دورې په دریو دورو ویشلي دي.

لومړۍ لرغونی سلطنت، دویم منځنی سلطنت او دریم د امپراطورۍ دوره(۱۰۹۰ ق. م تر ۱۵۸۰ ق.م).

۳- حضرت موسی(علیه سلام) د دویم رامسس د واکمنۍ په مهال څرګند شو.

**اضافي معلومات**

د افریقا په وچه کې د لرغونی مصر د تمدن د رامنځ ته کیدو اصلي لامل د نیل سیند و. د نیل سیند د نړۍ تر ټولو له اوږدو سیندونو څخه شمیرل کیږي. دغه سیند د افریقا له سترو جهیلونو څخه سر چینه اخلي او په پای کې د هغه اوبه د مدیترانې په سمندرګي کې تويیږي. له تاریخي دورو څخه وړاندې په مصر کې خلکو ګډوډ کوچیانی ژوند درلود تر هغه پورې چې د هغوی په ژوندانه کې پرمختګونه رامنځ ته شول او د نیل د سیند پر څنډو ځای پر ځای شول. په نیل کې د ډول ډول کبانو شتون د لرغوني مصر د خلکو په خوړلو کې پوره مرسته کوله. د وخت په تیریدو سره د نیل د سیند په څنډو کې یې په کرنه او مالداری باندې پیل وکړ او د یو ځلانده تمدن بنسټ یې د نیل د سیند په څنډو کې کېښود. ورو ورو کلي او ښارونه منځ ته راغلل او دغه ښارونه او کلي یو له بل څخه خپلواکه وو او په هغه وخت کې یو مرکزي او واحد حکومت شتون نه درلود، خو د ځایي واکمنانو د جګړو او سیالی په پایله کې د مصر ټول وګړې د یو کس تر فرمان لاندې چې له نورو څخه پیاوړی او ځواکمن و، راغلل. دغه فرمان چلوونکی (رامسس) نومیده.

**د لا زیاتو معلوماتو لپاره لاندنیو منابعو ته مراجعه وکړئ:**

۱- تمدن مغرب زمین، محمد حسین آریا.

۲- نگاهی به تاریخ جهان، جواهر لعل نهرو.

۳- تاریخ بشریت، پوهنمل محمد رحیم روهین.

## د (۲۵) لوست د تدریس لاربنود پلان

**د تدریس مهال : یو درسی ساعت (۴۵ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د لرغونی مصر تمدن او فرهنگ | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د مصر د تمدن او کلتور په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د لرغوني مصر له تمدن او کلتور سره به بلد شي،<br>– د لرغوني مصر د تمدن د کلتوري لاسته راوړنو په اړه به معلومات وړاندې کړي،<br>– د لرغوني مصر د تمدن او کلتور پر ارزښت به پوه شي. | |
| **د تدريس لارې او طريقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضيح او تشريح، گروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندويه او اړين درسي توکي** | تخته، تباشير، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلايد، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طريقې** | تقريري، تحريري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعاليتونه او د انگيزې رامنځته کول** | **لومړني فعاليتونه**<br>سلام اچول، سترې مشي، د لوست د اړينو توکو چمتو کول، د تير لوست ارزونه او د حاضرۍ اخيستل.<br><br>**د انگيزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او يا د يوه په زړه پورې تاريخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقيقو**<br>**۱۰ دقيقې** |

| منځنی او وروستۍ کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل، <br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل، <br>- د لوست تشریح او توضیح، <br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل، <br>- پوښتنو ته ځواب ورکول، <br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل، <br>- د تدریس په وخت کې ښه ځارنه. | - د ښوونکي خرګندونو ته پام کول، <br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت، <br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول، <br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول، <br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول، <br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۸۰ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

۱- مصریانو په ارباب النوع باندې باور درلوده. لمر، سپوږمۍ، د نیل سیند او ځینې ځناور یې سپیڅلې ګڼل او د هغوی انځورونه او مجسمې یې د احترام په موخه په معابدو کې کیښودلې.

۲- د مصر ټولنه له څلورو طبقو څخه جوړه شوې وه، د هرې طبقې په سر کې د فرعون کسانو شتون درلود، د طبقو په منځ کې د ژوندانه ډېر توپیرونه نه لیدل کیدل، ټول وګړي د قانون په وړاندې یو شان وو.

۳- لومړنۍ لیک چې مصریانو رامنځ ته کړ، د هیرو ګلیف لیک و. کاهنانو (مذهبي لارښوونکو) به هغه د عبادت ځایونو، قصرونو او د فرعونیانو په قبرونو کې د مطلبونو د لیکلو په اړوند کارول او په ځانګړو ښوونځیو کې به زده کوونکو ته هم زده کړه ورکول کیده.

**اضافي معلومات**

د مصریانو فرهنګي میراث، له ډیر شمیر اهرامو، عبادت ځایونو، هدیرو، انځور شوو مجسمو، کتیبو او سرودونه څخه دی چې ټول د عقایدو په سیوري کې منځ ته راغلي دي. د لرغوني مصر وګړو په ډول ډول خدایانو باور درلود چې د هغوی تر ټولو نامتو، (را) د لمر خدای و.

څرنګه چې هغوی د لمر په راختو او لویدو باندې پوهېدل، فکر یې کاوه چې (را) هره ورځ په سرعت له آسمان څخه تیرېږي او د شپې لخوا دښتو او بیابانونو ته ځي. کله چې د مریتوب نظام (غلامي) رامنځ ته شو فرعونیان هم د ځمکې پر مخ د خدای استازی شمیرل کیدل، سربیره پر دې د دوی په اند لمر، سپوږمۍ، نیل او ځناوران، لکه:غویې، پشکه، نهنګ ټول سپیڅلي دي.

د پخواني مصر د کشف شوو آثارو له جملې څخه چې د ټولنیز ژوندانه په اړه موږ ته معلومات راکوي، څلور طبقي هرم دی چې په واقعیت کې د مصر ټولنه له یو څلور طبقي هرم څخه جوړه شوې ده چې په هره طبقه کې د یوې ډلې خلکو شتون درلود. د دې هرم په سر کې فرعون و چې په ټول ځواک سره یې پر خلکو حکومت کاوه، پوځیان، قانون جوړونکي، مذهب او اداري سازمانونه ټول د ده په اختیار کې وو چې د وزیر په مرسته سره یې هغوی اداره کول.

د لرغونی مصر لیکونه د هیروګلیف په لیک دي. د هیروګلیف لیک د سپیڅلې الفبا لرونکی و چې په هغه مها ل کې د سپیڅلو توکو د ښکارولو لپاره د تصویري علایمو په عنوان ورڅخه کار اخیستل کیده. هیروګلیف وروسته ساده او د لیکنې په موخه په دوه ډله لیک باندې وویشل شو، خو هیڅ کله یې د الفبا په ډول بدلون و نه موند.

# د (۲٦) لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال : دوه درسي ساعتونه (۹۰ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د فارس تمدن | |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې په ختیځ کې د فارس د تمدن په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د فارس له تمدن سره د زده کوونکو بلدتیا،<br>– د لرغونی فارس د تمدن سیمې د تاریخي نقشې په مخ ښکاره کړي او په دې هکله به خپل معلومات وړاندې کړای شي،<br>– په ختیځ کې د فارس د تمدن په ارزښت به پوه شي. | |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، سترې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنـــــی او وروســـــتی کړنـــــــې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخـــت په دقیقو |
| --- | --- | --- | --- |
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو بانـدې د زده کوونکـو ویشـل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوســـت ارزونـــه او د کـــورنی دنـــدې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونـو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دنـدې سـرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۸۰ دقیقې |
| **د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**<br>۱- د اوسني ایران (فارس) سیمې له سیالک، ګوران، مارلک، جیروخت او شهر سوخته څخه عبارت دي.<br>۲- د هخامنشیانو د حکومت بنسټ ایښودونکی لوی کوروش و چې د مادیانو له حکومت څخه وروسته منځ ته راغی او د بابل ښار تر نیولو وروسته یې، خپل ځان د بابل پاچا ونوماوه.<br>۳- هغه قبرونه چې مادیانو د خپلو پاچاهانو لپاره کېندلی وو، ورڅخه سفالي او فلزي آثار لاسته راغلي دي چې د مادیانو د هنر او معماري د مهارت ښکارندوی دي. | | | |

**اضافي معلومات**

په فارس کې د لرغونې تمدني مرکزونو له جملې څخه یو هـم د مارلـک غونـډۍ ده، دغـه تپـه (غونـډۍ) اوس د ګیلان په سیمه کې پرته ده. له دغې سیمې څخه ځینې اثـار چې تـاریخي لرغونتـوب یـې د فـارس خـاورې تـه د اریایانو له مهاجرت څخه مخکې وخت ته رسیږي لاسته راغلې دي.

د فارس بله سیمه شهر سوخته دی چې په زاهدان کې پرته ده، لرغونتوب یې له مـیلاده څخـه وړانـدې څلـور زرو کالو ته رسیږي، د شهر سوخته له کشـفیاتو څخـه زیـاتره د خټـو مهرونـه، د حیوانـاتو خټنـې او کـوچنی مجسـمې، زینتي توکي د لاجوردو له ډبرو څخه، فیروزه او عقیق لاسته راغلي دي.

له مهمو کشف شوو اثارو څخه، په ایلامي ژبه لوحې دي، له دې امله د سوخته ښار د هغه مهال د اړیکو مرکز و. کابو ۳۰۰۰ کاله له میلاده څخه وړاندې ایلامیانو د بوشهر په خاوره کـې د کرمـان، لرسـتان او کردسـتان پـه سـیمو کې د ایلام د تمدن بنسټ کېښود چې د دې تمدن د سیاسي فعـالیتونو مرکـز د شـوش ښـار و. ایـلام لانـدې درې تاریخي دورې تیرې کړي دي.

۱- پخوانی ایلام له میلاده څخه ۱۵۰۰ کاله وړاندې،

۲- منځنی ایلام له میلاد څخه له ۱۳۵۰ تر ۱۱۰۰ کاله وړاندې ، د ایلام تمدن ځلانده پیر.

۳- نوی ایلام له میلاده څخه له ۹۰۰ تر ۶۴۵ کال وړاندې، له اشور سره سیاسي سیالي.

## د (۲۷) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس مهال : دوه درسي ساعتونه (۹۰ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د هند تمدن | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د لرغوني هند د تمدن په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د لرغونی هند د تمدن د منځته راتللو له لاملونو سره به بلد شي،<br>– د تاریخي نقشې له مخه خپل معلومات د لرغونی هند د تمدن په اړه نوروته بیان کړای شي،<br>– په لرغونې نړۍ کې د هند د تمدن ارزښت درک او احساس کړای شي،<br>– د تمدن له لاسته راوړنو سره به مینه پیدا کړای شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، گروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انگیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، سترې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انگیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنـــې او وروســـتۍ کړنـــې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخـــت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۸۰ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- هراپه او موهنجو دارو د هند د لرغونو سیمو له جملې څخه شمیرل کیږي چې تاریخي قدامت یې له میلاد څخه وړاندې۳۰۰۰ کالو ته رسیږي. د هراپه او موهنجو دارو تمدن د سند په لویدیځ کې منځته راغلی و او له دراویدي قومونو سره یې تړاو درلود.

۲- اریایانو له میلاد څخه ۱۵۰۰ کاله وړاندې هند ته مهاجرت وکړ او په هند کې یې د کاست (طبقاتي) سیستم رامنځ ته کړ او د دې ویش پر بنسټ څلور طبقې، لکه: برهما(روحانیون)، کشاتریان (جنګیالي)، ویستا(سواګر او کروندګر) او سودارا (کارګران) رامنځته شوې.

۳- د لرغوني هند خلک په علومو، لکه: ریاضي، طبابت او د نجوم په علم (ستورې پیژندلو) کې ډیر پرمختګونه درلودل. له یو څخه تر (۹) پورې عددونه، او اعشاري سیستم او داسې نور د هندیانو په واسطه منځته راغلل.

**اضافي معلومات**

هند په اسیا کې د پخوانیو تمدنونو د پیدایښت له مرکزنو څخه دی. دغه خاوره د هغو دینونو او اندیشو د پیدایښت مرکز و چې د نړۍ په تاریخ کې یې اساسي رول لوبولی دی.

هند په لرغوني پیر کې خپلې سوداګریزې او کلتوري اړیکي له ګاونډیانو سره او په ځانګړې توګه له چین سره ټینګې کړې، خو سوداګرانو د وریښمو له لارې چیني توکي یې هند ته وړل او د هغوی تولیدات یې د نړۍ نورو سیمو ته استول. څرنګه چې اریایان جنګیالي خلک وو، د هند خاورې ته له ننوتلو څخه وروسته یې د هند د اصلي خلکو (دارویدیانو) په ټکولو لاس پورې کړ او د هغوی پر ښارونو او کلیو باندې واکمن شول. د اریایانو ځواکمنتیا د هند پر شمالي سیمو باندې د دې لامل شو چې دارویدیان د هند مرکزي او سویلي سیمو ته کډه وکړي او ځینو یې د سویلي هند په سواحلو کې لوی ښارونه جوړ کړل او د سمندر له لارې یې د بین النهرین له خلکو سره په سوداګرۍ لاس پورې کړ.

# د (۲۸) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس مهال : دوه درسي ساعتونه (۹۰ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د چین تمدن | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د چین د تمدن په اړه معلومات تر لاسه کړي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- ختیځ کې د چین له تمدن سره بلدتیا،<br>- په لرغوني چین کې د حکومتونو د لړیو د را منځ ته کېدو په اړه به معلومات وړاندې کړای شي،<br>- د لرغوني چین د علمي اوکلتوري لاسته راوړنو په اړه به خپل نظرونه وړاندې کړای شي،<br>- په لرغوني ختیځ کې د چین د تمدن په ارزښت او عظمت باندې به پوه شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، سترې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>۱۰ دقیقې |

| منځنـــی او وروســـتی کړنـــــې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخـــت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو بانـدې د زده کوونکـو ویشـل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوســت ارزونــه او د کــورنۍ دنــدې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونـو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دنـدې سـرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۸۰ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د (چه این) قبیلې واکمن شي هوانګ تی و. هغه پیاوړي پوځي ځواک په واک کې درلودل، له همدې امله بریالی شو چې کوچني حکومتونو له منځه یوسي او د چین په لوی هیواد کې خپل ځان د چین د لومړني سلطان یا امپراتور په توګه اعلان کړي، په دې مهال کې د چین د تمدن د ودې او ځلانتیا لپاره زمینه برابره شوه.

۲- د لرغوني چین خلکو د آسمان، ځمکې او د خپلو نیکونو لمانځنه کوله، د چین تر ټولو نامتو کیش د تاو او کنفوسیوس ایین و.

۳- چینایانو د ریاضیاتو، نجوم او جغرافیې په برخه کې ډیر پرمختګونه درلودل. هغوی د خپل هیواد د جغرافیې په اړه، د چین د ځینو ایالاتونو نقشې او د زلزلې په هکله معلومات تر لاسه کړل او حتی قطب نما یې هم اختراع کړې وه.

**اضافي معلومات**

د چین هیواد چې داسیا په ختیځ (لیرې ختیځ) کې موقعیت لـري د لرغونو تمـدنونو د مرکزونـو لـه جملې څخه شمیرل کیږي. د چین لرغونی تمدن د (هوانګهو) د سیند په څنډو (سواحل) کې پیل شوی و. دغه سـیند د اوبـو د زیاتوالي په مهال زیږه خاوره د (رس) په نامه له ځان سره راوړله چې دکرنـې او زراعـت لپـاره ګټـوره وه. پـه دې توګه د هوانګهو سیند د زیږ سند په نامه هم یادوي.

د دې حاصلخیزې سیمې اوسېدونکو په لومړیو وختونو کې خپل خوراکي تـوکي لـه میـوو، دانـو او د حیوانـاتو لـه ښکار څخه لاس ته راوړل، په هغه مهال کې هغـوی د زیـرو الاتـو څخـه چـې لـه ډبـرو څخـه یـې جـوړول، کـار اخیسته. تر هغې چې کرنې ته یې مخه کړه او د حیوانـاتو لـه اهلـي کولـو او د خټینـو لوښـو لـه جوړولـو سـره یـې اشنایي پیدا کړه. ورو ورو کلي منځ ته راغلل او قبیلې هم جوړې شوې، د ډیرو قبیلو مشرانو لـه خپـل واک او زور څخه کار اخیسته، ډیرې ځمکې او د هغو حاصلات یې تر لاسته کول.

# د (۲۹) لوست د تدریس لاربنود پلان

د تدریس مهال : دوه درسي ساعتونه (۹۰ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د یونان تمدن | |
| عمومي موخه | د یونان د لرغونی تمدن سره د زده کوونکو پیژندګلوي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د کرت د جزیرې د تمدن او د یونان د ټولنیزې وضعې په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– د یونان د دولتي ښارونو په اړه به معلومات تر لاسه کړي،<br>– د یونان د کلتوري، علمي او هنري لاسته راوړنو په اړه به معلومات تر لاسه کړي،<br>– د یونان د نامتو فیلسوفانو د اثارو سره به مینه پیدا کړی. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، سترې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>۱۰ دقیقې |

| منځنۍ او وروستۍ کړنې | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| (فعالیتونه) | - پر تخته باندې د لوست د سرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه ځارنه. | - د ښوونکي څرگندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولگي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولگي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۸۰ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- کرت د یونان یوه ټاپو دی. په ۱۹۰۰ زیږدیزې کال کې د لرغون پیژندونکو پلټنو دا وښودله چې د کرت په جزیره کې یو پرمختللي تمدن شتون درلود چې د مصر او بین النهرین له تمدنونو سره یې سیالي کوله.

۲- د یونان د دولتي ښارونو له جملې څخه اسپارت او اتن وو چې د اسپارت وگړو په جگړو کې شهرت درلوده او د اتن وگړو د دموکراسی، علم او فلسفې په دودولو کې ډیر مشهور وو.

۳- یونانیانو پر ډیرو خدایانو باندې عقیده درلوده، لکه: د ځمکې ، اسمان، برښنا او داسې نور.

۴- د یونان نامتو فیلسوفان له: سقراط، افلاطون او ارسطو څخه عبارت وو.

**اضافي معلومات**

پوهانو د نولسمې پیړۍ تر پایه پورې د کرت د ټاپو په اړوند دقیق اطلاعات په لاس کې نه درلودل. تر هغه وخت پورې چې انگلیسي لرغون پیژندونکي ارتورایوانز په ۱۹۰۰ زیږدیز کال کې د پلټنې په ترڅ کې دا وښودله چې له میلاد څخه ۶۰۰۰ کاله مخکې د کرت په ټاپو کې یو پرمختللي تمدن شتون درلود چې له هر پلو یې د مصر او سومر له تمدن سره سیالي کوله او په ځینو برخو کې یې د هغوی په پرتله زیاتوالی درلود، په ځانگړې توگه له کنوسوس څخه د ځینو شواهدو په تر لاسه کولو سره د کرت تاریخ تر ډیرې کچې پورې روښانه شو.

په مصر کې د کرتي لوښو کشفول او د کرت په ټاپو کې د هغه عکس په دې دلالت کوي چې کرت له مصر او بین النهرین سره سوداگریزې اړیکې درلودې.

د کرت د ټاپو وگړي له ایبري یا مدیترانه یي نژاد څخه وو چې دغه وگړي لومړنی کسان وو چې د بیړۍ په جوړولو یې لاس پورې کړ او سمندریزه سوداگري یې له ښه پرمختگ څخه برخمنه وه. له لاسته راغلو شواهدو څخه داسې څرگندیږي چې په کرت کې لومړی کوچنیو دولتونو شتون درلود، خو بیا له میلاد څخه ۲۰۰۰ کاله وړاندې هلته مرکزي دولتونه منځ ته راغلل چې پلازمینه یې د کنوسوس ښار و او د پلازمینې پاچا هان او امیران د مینوس په نوم یادیدل.

د کرت د خلکو ژبه له یوناني ژبې سره توپیر درلوده او مصري او قبرسي ژبو ډیر ورته وه، لیك یې په لومړي سر کې له هیروگلیف (تصویري) علامو څخه جوړ شوی و، خو وروسته کرار کرار بل لیك دود ومونده چې ډیرو تورو یې له فینقي الفبا سره ورته والی درلود.

په پای کې د کرت تمدن د هندو اروپایي قبایلو د یرغلونو له امله له منځه ولاړ او د کنوسوس مانۍ د دروینانو په لاس له منځه ولاړه او د کرت تمدن ته یې د پای ټکی کیښود.

## د (۳۰) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس مهال : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د روم تمدن | |
| عمومي موخه | د روم له لرغوني تمدن سره د زده کونکو پېژندګلوي. | |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- د روم د تمدن د سیاسي وضعې په اړه به معلومات تر لاسه کړای شي،<br>- د روم په ټولنیزې وضعه باندې به وپوهیږي،<br>- د روم د کلتور او د هغه له هنري لاسته راوړنو سره به بلد شي،<br>- د روم او یونان ټولنیزه او کلتوري وضعه به یو له بل سره پرتله کړای شي،<br>- د معماري له هنر سره به مینه پیدا کړای شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، سترې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>۱۰ دقیقې |

| منځنــــــــی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخـــت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پـر تختـه بانـدې د لوسـت د سـرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوسـت ارزونـه او د کـورنی دنـدې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه ځارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوسـت پـه بهیـر کـې د مهمـو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوسـت او مهمـو مطلبونـو وړانـدې کول،<br>- د ښـوونکي پوښـتنو تـه ځـواب ورکول،<br>- پـه کـور او ټـولګي کـې د دنـدې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- په روم کې د شاهي نظام له نسکوریدو څخه وروسته د جمهوري نظام بنسټ کېښودل شو او د اعیانو (سناتورانو) مجلس یا دسل کسیزه غړو شورا چې به ترکیب کې یې قومي مشرانو شتون درلود، جوړه شوه.

۲- اکتاو هغه سړی و چې د روم د امپراتورۍ بنسټ یې کېښود. نوموړي له میلاده څخه ۲۷ تر ۱۶ کاله وړاندې په روم کې واکمني وکړه، د هغه د واکمنۍ په وخت کې ډېر اصلاحات وشول، فساد له منځه ولاړ، نظم او قانون حاکم شو، نوې محکمې جوړې شوې او پوستي خدمات منځته راغلل.

۳- د روم ټولنه په دوو برخو یعنی ختیځه او لویدیځه باندې وویشل شوه چې لویدیځ روم ډېر ژر د وحشي او بربر قومونو په وسیله له منځه ولاړ، خو ختیځ روم چې پلازمینه یې قسطنطنیه وه ډېر وخت یې دوام وکړ.

۴- د روم قانون درې برخې درلودې، لومړۍ برخه یې مدني او کورنۍ قانون، دویمه برخه یې د وګړو قانون او دریمه برخه یې طبعي قانون و.

**اضافي معلومات:**

د روم د امپراتورۍ له ودې سره سم د کارتاژ ښار چې په شمالي افریقا کې د فینقیانو د واکمنۍ ځای و، د اقتصاد او سوداګرۍ پلوه له ډېر ارزښت څخه برخمن شو ځکه چې کارتاژیانو د شمالي افریقا سیمې، ساردیني، سیسلي کوریسکا او هسپانیا یې تر خپلې ولکې لاندې درلودې او همدارنګه د لویدیځې مدیترانې سوداګریز انحصار یې هم په خپل لاس کې درلود. هغوی د تور پوستکو غلامانو، عاج، فلزاتو او د افریقا د قیمتي ډبرو د پلورلو له لارې د ډېرو پانګو خاوندان شول.

په پیل کې د یونانیانو د له منځه وړلو لپاره د مدیترانې په سمندرګي کې روم او کارتاژ یو بل ته لاس ورکړ، خو د یونانیانو له شړلو څخه وروسته دغه دوه تمدنونه یو د بل سیال وګرځېدل او یو له بل سره یې جګړې وکړې، څرنګه چې سیسیل یو ښیرازه (حاصل خیزه) ټاټوبې و د رومیانو لپاره د غلې دانې یوه غوره منبع کیدای شوه چې د کارتاژیانو په لاس کې وه، که چیرې رومیان بریالي کیدل د غلې دانې زیاته برخه یې له دغې سیمې څخه پوره کوله، له همدې امله چې د یونان په سینایي ښار باندې د کارتاژیانو یرغل چې د سمندري غلو له خوا اشغال شوې وو، د رومیانو لپاره یوه بهانه شوه چې له کارتاژیانو سره جګړه پیل شي چې یوه پیړۍ یې دوام وکړ چې د پونیک د جګړو په نوم شهرت لري.

د پونیک لومړنۍ جګړه له ۲۶۴ څخه تر ۲۴۱ کاله وړاندې له میلاد، دویمه جګړه یې له میلاد څخه له ۲۰۱– ۲۱۸ کاله وړاندې له میلاده او دریمه جګړه یې له ۱۴۹ څخه تر ۱۴۶ کاله وړاندې له میلاد څخه دوام وکړ. چې په پای کې رومیانو پر کارتاژیانو باندې بری وموند. دغو جګړو د رومیانو په سیاسي ، ټولنیزې او اقتصادي وضعې کې سترې پایلې منځته راوړې. څرنګه چې د کارتاژیانو په له منځه وړلو سره د هغوی ټولې سیمې او ثروت د رومیانو په لاس کې ولوېد چې دغه کار د رومیانو د پراختیا او ودې لامل شو او روم یې په یو لویه امپراتورۍ بدل کړ او د پاتریسین (غني طبقه) په ژوند کې ډېر بدلون راغی. د هغوی پانګه ډیره شوه، خو د فقیرو او بې وزلو خلکو په ژوند کوم بدلون را نه غی، بلکې د جګړو له امله هغوی ډېر زیانمن شول.

**منبع:**


- تمدن مغرب زمین، اسپیل فوګل.
- تمدن های بزرګ جهان، نادر میر سعیدی.
- نګاهی به تاریخ جهان، جواهر لعل نهرو.

# د (۳۱) لوست د تدریس لاربنود پلان

د تدریس مهال : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د امریکا تمدن | |
| عمومي موخه | د امریکا د لرغونو تمدنو سره د زده کوونکو پیژندګلوي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- د امریکا د بومي اوسیدونکو او د هغوی د اتنیکي منشأ په اړه به معلومات تر لاسه کړای شي،<br>- د مایانو له تمدن سره به بلد شي،<br>- د ازتکیانو او اینکایانو د تمدنو په اړه به معلومات تر لاسه کړي،<br>- د امریکا لرغوني تمدنونه به تحلیل او تفسیر کړای شي،<br>- د امریکا نقشې به رسم کړای شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>۱۰ دقیقې |

| منځنـــی او وروســـــتی کړنــــــې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخـــت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د امریکا بومي ټولنه مغولان وو چې د سایبریا او الاسکا له لارې مهاجره شول او د تمدنونو ځینې نښې نښانې یې له خپل ځان سره را نقل کړې.

۲- د مایانو تمدن له میلاد څخه کابو ۱۵۰۰ کاله د مخه منځ ته راغی او تر مرکزي امریکا (ګواتیمالا، مکسیکو، هاندوراس ) سیمو پورې یې پراختیا پیدا کړه.

۳- ازتکیانو له میلاد څخه د مخه په نهمه پیړۍ کې په مکسیکو کې راښکاره شول هغوی جنګیالي خلك وو او ازتکیانو ډېره لویه امپراتوري منځته راوړه چې په ۳۸ ولایاتو ویشل شوې وه.

**اضافي معلومات**

د ازتکیانو مرکز تنوچ تیتلان و، تنوچ تیتلان په لومړیو کې یو کلی و چې په ډېره چټکتیا سره یې پراختیا وموندله، د هغه په مرکز کې کورونه جوړ شول چې لومړنی عبادت ځای شمیرل کیده، دغه کور څو واره بیا ورغول شو چې په پای کې د ښار په لوی عبادت ځای بدل شو.

د تنوچ تیتلان ښار د تئوتي هواکان د لرغوني ښار د طرحې پر بنسټ باندې جوړ شوی او په څلوو برخو ویشل شوی و. د ازتکي هره کورنۍ له نوموړو برخو څخه په یوه برخه کې مېشته شوه او هره کورنۍ د یوې ټوټې ځمکې څښتنه وه چې د هغوی غړو پر خپل ځمکه باندې کار کاوه او له محصولاتو څخه یې خپلې اړتیاوې پوره کولې او هغوی د خپل پخوانۍ مشر د احترام په خاطر تنوچ ښار ته تنوچ تیتلان نوم ورکړ.

تنوچ تیتلان د ځلاندې دورې په لړ کې په یو ښار باندې واوښت چې مخکې له هغه څخه د امریکا په وچه کې داسې عظمت لیدل شوی نه و. تر هغه ځایه پورې چې د هسپانیایي فاتحانو د تعجب وړ وګرځید او هغوی د دې ځای په لیدو سره دغه ځای ته (ونیز) یا د نوې قارې نوم ورکړ.

**منبع:**

- تمدن مغرب زمین، اسپیل فوګل.
- تمدن های بزرګ جهان، نادر میر سعیدی.

## د (۳۲) لوست د تدریس لارښود پلان

د تدریس مهال : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د اسلام د خپریدو په درشل کې د نړۍ او عربستان ټاپوزمي اوضاع. | |
| عمومي موخه | د اسلام د خپریدو په درشل کې د نړۍ او عربستان د ټاپوزمي له اوضاع سره د زده کوونکو پیژندګلوي | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د اسلام د خپریدو په مهال د نړۍ د وضعیت له څرنګوالی سره بلد شي،<br>– د اسلام د خپریدو په درشل کې به د عربستان د ټاپوزمې په وضعیت وپوهیږي،<br>– د اسلام د خپریدو په درشل کې به د نړۍ او د عربستان وضعیت تحلیل او تفسیر کړای شي.<br>– د اسلام د سپیڅلی دین له ارزښتونو سره به علاقه پیدا کړای شي. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>۱۰ دقیقې |

| منځنۍ او وروستۍ کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د عربستان وګړو له اسلام څخه د مخه خپلې لورګانې د لوړې او یا د ننګ او شرم له مخې ژوندۍ په ګور کولې او ښځه د هغوی په وړاندې بې ارزښته وه او لکه د بې ارزښته توکي په شان پلورل کیدې او اخیستل کیدې.

۲- څرنګه چې د اسلام د سپیڅلي دین له خپریدو څخه وړاندې پر ځمکه باندې کفر، ویره او ډار حاکم و، د نړۍ ټول خلک په جهل او توره تیاره کې ډوب وو.

۳- د عربو خلکو له اسلام څخه وړاندې په یهودي، نصراني، د بوتانو، لمر، سپوږمۍ او ستورو په لمانځنې باندې عقیده درلوده.

**اضافي معلومات**

په جزیرة العرب کې د شرک د منځته راتللو په اړه درې نظریې ویل شوي دي:

۱- ځینې په دې اند دي چې شرک د جزیرة العرب له سیمې څخه راپورته شوی دی. دوی داسې وایي: کله چې حضرت اسماعیل پر حجاز باندې حاکم شو (جُرهمیانو) چې د هغه له مورنې قوم څخه وو. هغوی مکې ته راغلل، په مکه کې د هغوی حضور او له بیت الحرام(کعبه) سره د نوموړو تماس او هغه علاقه چې د دې اړیکو له امله را پیدا شوې وه، هغوی یې مجبوره ول چې له بیت الحرام څخه لیرې نشي. په پای کې د اړتیا له امله مسافرت ته اړ شول او له حرم سره د اړیکې دساتنې په خاطر یې لږ خاوره او یا د ډبرو ټوټې له خپل ځان سره یې یوړې. چې په پای کې هم دغه خاوره او ډبره د وخت په تیریدو سره د درناوی له پلوه په مختلفو ډولونو د ستاینې وړ شوه. په پای کې شرک او د بوتانو لمانځنې دود پیدا کړ.

۲- ځینې نور داسې وایي: کله چې عمرو د یحیی زوی پر مکه باندې حاکم شو او د سوداګرۍ په موخه شام ته ولاړ او خپله کورنۍ یې ولیدله چې د بوتانو لمانځنه یې کوله، هغه هم ورته علاقمند شو او له هغو بوتانو څخه یې یوه برخه مکې ته را نقل او خلکو ته یې امر وکړ چې هغوی هم د بوتانو لمانځنه او درناوی ورته وکړي.

۳- ځینې څیړونکي په دې اند دي: د هغه واټن له امله چې د حنیفي دین او خلکو تر منځ رامنځ ته شوی ورو ورو د انحرافاتو ځینې اثار ښکاره شول او همدارنګه د ګاونډیو تمدنونو، لکه: سینایي، رومي او بین النهرین شرکي عقیدې هم اغیزه درلوده او په پای کې د عربستان خلک د شرک لور ته لاړل.

# د (۳۲) لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال : دوه درسی ساعتونه (۹۰ دقیقې)**

| **د مطلبونو سرلیکونه** | **د مطلبونو شرح** | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د حضرت محمد (ص) ژوند له پیدایښت څخه تر بعثت پورې. | |
| **عمومي موخه** | د حضرت محمد(ص) له ژوند سره (له پیدایښت څخه تر بعثت پورې) د زده کوونکو پېژندګلوي. | |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– د اسلام د سپیڅلي دین له خپریدو څخه وړاندې د حضرت محمد(ص) له ژوندانه سره پېژندګلوي،<br>– د حضرت محمد (ص) په پیغمبري باندې د مبعوث کیدو له څرنګوالي سره بلدتیا،<br>– حبشې ته د مسلمانانو د هجرت په اړه معلومات تر لاسه کول،<br>– د اسلام پیامبر حضرت محمد(ص) د عالي شخصیت په اړه پېژندګلوي،<br>– د اسلام د دیني ارزښتونو درک او احساس،<br>– د زده کوونکو په منځ کې د امانت ساتنې او ریښتینولی د روحیې پیدا کول. | |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>**۱۰ دقیقې** |

<table>
<tr><th>منځنـــي او وروستی کړنې</th><th>د ښوونکي فعالیتونه</th><th>د زده کوونکو فعالیتونه</th><th>وخـت په دقیقو</th></tr>
<tr><td rowspan="2">(فعالیتونه)</td><td>- پـر تختـه بانـدې د لوسـت د سـرلیك لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکـو ویشـل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوسـت ارزونـه او د کـورنۍ دنـدې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه نظارځارنه.</td><td>- د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونـو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دنـدې سـرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول.</td><td>۸۰ دقیقې</td></tr>
<tr><td colspan="3">د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه<br>۱- محمد بن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدالمناف بن قصی بن کلاب بن مره دی.<br>۲- مسلمانانو د مکې د کافرانو د ازار له لاسه حبشې ته هجرت وکړ.<br>۳- کله چې حضرت محمد(ص) طایف ته ولاړ چې د هغه ځای خلك اسلام ته راوبلي، هغوی نه یواځې د اسلام د پیغمبر بلنه ونه منله، بلکي کوچنیانو او ځوانانو ته یې دنده ورکړه چې د حضرت محمد(ص) په ځورولو لاس پورې کړي او له ښار څخه یې وباسي.</td></tr>
</table>

**اضافي معلومات**

حضرت محمد (ص) د دو شنبې په ورځ، د ربیع الاول په دولسمه، د عام الفیل په کال چې له ۵۷۱ میلادي سره سمون لري، زیږدلی دی. د حضرت محمد (ص) پلار عبدالله نومیده چې د هغه له زیږیدو څخه مخکې وفات شوی و. کله چې حضرت محمد(ص) شپږ کلنۍ ته ورسید، د هغه مور بي بي آمنه وفات شوه او د جناب پالنه د هغه نیکه عبدالمطلب په خپل غاړه ونیوه، خو عبدالمطلب هم له دوو کالو څخه وروسته له نړۍ سترګي پټې کړي او د حضرت محمد(ص) کفالت د هغه تره ابوطالب په خپله غاړه واخیسته.

ابو طالب ډیر شریف سړی و. حضرت محمد(ص) ورته له خپل اولادو څخه ډیر ګران و، خو د اقتصاد له پلوه کمزوری و. په دې توګه حضرت محمد(ص) اړ شو چې خپل زیاتره وخت د ژوند د اړتیاوو د پوره کولو لپاره مصرف کړي. هغه هم ډیر ستونزمن کارونه، لکه: د رمې ساتنه، د دوبې په ګرمیو کې چې د

حضرت محمد (ص) په روح او روان باندې یې ډیر ښه اغیز پر خپل ځای پریښود، همدارنګه بیابان د نړۍ د خلقت(پیدایښت) په اړه د ده د تفکر لپاره ډیر مناسبه ځای و.

حضرت محمد(ص) د دولس کلنۍ په عمر کې له خپل تره ابوطالب سره د سوداګرۍ لپاره شام ته ولاړ، خو سوداګریز کاروان په سوریه کې بصرا ښار ته نږدې دمه وکړه. په دې ښار کې د بحیرا په نامه یو راهب اوسیده، بحیرا تر هغه وخت پورې له نورو کاروانونو سره چې له هغه ځای څخه تیریده اړیکي نه نیولې او خبر یې ور سره نه کولې، خو هغه په دې کال د دې کاروان د هرکلي لپاره راغی. د نښو او علامو، مطالعاتو او تجربو له

مخې يې حضرت محمد(ص) وپیژند او ابوطالب ته يې وويل: دغه د عالميانو سيد او د جهانيانو رسول دی او خدای(ج) هغه يې د جهانيانو لپاره د رحمت العالمين په توگه په پيغمبری مبعوث کوي، ابوطالب او د قريشو لويانو وويل: څنگه وپوهيدې؟ هغه وويل: کله چې د غونډی غاړې ته نږدې شوی، هيڅ ډبره او ونه نه وو چې دغه جناب ته سجده ونکړي او دوی له پيغمبر څخه پرته بل هيڅ چاته سجده نه کوي او زه هغه د نبوت له مُهر څخه پيژنم چې پخپل کتاب کې مي لوستلی دی. وروسته يې د کاروانيانو لپاره ميلمستيا تياره کړه او له ابوطالب څخه يې وغوښتل چې جناب حضرت(ص) شام ته يو نسي او بيرته يې مکې ته وگرځوي، ځکه امکان لري چې د شام روميان او يهوديان زيان ورته ورسوي، نو هغوی بيرته وگرځيدل.

حضرت محمد(ص) د نيکو اخلاقو خاوند و. هغه جناب د خپل قوم په منځ کې په شفقت، وفا، عهد ساتنه، حوصلې، عفت، تواضع، زړورتيا د امانت په ساتنه او رښتينولی کې مشهور و. تر هغه ځای پورې چې ورته يې د امين لقب ورکړی و.

پيغمبر(ص) د ځوانی په مهال د مکې له ځينو ځوانانو سره له هغه کسانو سره چې پرې زور زياتی شوی و، د حلف الفضول په نوم يو تړون وتاړه. د حجرالاسود پر ايښودلو باندې د اعرابو د مختلفو قبيلو تر منځ ستونزه پيښه شوه. له مباحثې او مناقشې څخه وروسته يې د اعرابو د قبيلو د مشرانو د ستونزې د حل لپاره پريکړه وکړه او تصميم ونيول شو چې هر څوک له ټولو څخه مخکې د کعبې دروازې ته ورننوت، د هغه حکم به ومنو. په دې وخت کې حضرت محمد(ص) له ټولو څخه مخکې کعبې ته ورننوت او ټولو پرې غږ وکړ چې امين داخل شو، وروسته له هغه حضرت محمد(ص) د ځانگړې تدبير او فکر سره سم حجرالاسود په يو څادر باندې کيښود او د هغه څنډې يې د قبيلو د لويانو په لاس کې ورکړې او په دې توگه د يوې سترې وينې تويوني څخه مخنوی وشو.

د اسلام پيغمبر(ص) د عادي خلکو غوندې ژوند کاوه. د هغه کور، خوراك او کالي ډير ساده وو، هيڅ کله يې خپل ځان له نورو څخه پورته نه گانه. د الهي قوانينو (قران شريف) سره سم د خپلو خپلوانو او مومنانو په وړاندې مهربان او د کافرانو او دښمنانو په مقابل کې يې کلك دريځ درلود، له کوچنيانو سره يې مينه کوله او د خپلو ميرمنو او اهل بيتو په وړاندې مهربان و.

د هغه جناب شخصيت داسې و چې د قران کريم عملي څيره د هغه په وجود کې ښکاره شوې وه. چې د هغه ژوند د نورو مسلمانانو لپاره يوه بيلگه اووسي.

**منبع:**


- تاريخ سياسی اسلام، داکتر حسن ابراهيم حسن.
- سيرة النبي، مولانا صيف الرحمن مبارکپور.
- تاريخ صدر اسلام، غلام حسين زرگری نژاد.

## د (۳٤) لوست د تدریس لاربنود پلان

د تدریس مهال : یو درسي ساعت (۴۵ دقیقې)

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د عقبې بیعت | |
| عمومي موخه | د عقبې له بیعت سره د زده کوونکو پېژندګلوي | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- د عقبې بیعت او مدینې ته د مسلمانانو د هجرت له څرنګوالي سره بلدتیا،<br>- د عقبې د لومړي او دویم بیعت په اړه معلومات تر لاسه کول،<br>- هغه لاره چې مسلمانانو مدینې ته پرې هجرت وکړ رسم کړای شي،<br>- یودبل په وړاندې د صله رحمۍ او د ستونزو په وړاندې د صبر او تحمل د روحیې رامنځ ته کول. | |
| د تدریس لارې او طریقې | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| مرستندویه او اړین درسي توکي | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| د ارزونې طریقې | تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ... | |
| لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | وخت په دقیقو<br>۱۰ دقیقې |

| منځنـــــــی او وروستی کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخـــت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته بانـدې د لوسـت د سـرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوسـت ارزونـه او د کـورنۍ دنـدې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرگندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کـې د مهمـو مطلبونـو یاداشت،<br>- په ټولگي کې د ډلـو د استازو لخـوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټـولگي کـې د دنـدې سـرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**<br>۱- له خدای (ج) سره هیڅ څوک او یا کوم شی نه شریک کوو، نیک اعمال پرځای کوو او خپل اولادونه نه وژنو، دروغ نه وایو په هیڅ چا تورنه لگوو او د خدای(ج) د رسول نافرماني نه کوو.<br>۲- د عقبې دویم بیعت د بعثت په دیارلسم کال کې تر سره شو.<br>۳- حضرت محمد(ص) د جمعې لومړنی لمونځ د بني سالم بن عوف په قبیلې کې ادا کړ. | | |

**اضافي معلومات**

وروسته له هغه چې مسلمانانو له مکې څخه مدینې منورې ته هجرت وکړ، د مهاجرو او انصارو تر منځ د ورورولۍ تړون رامنځته شو، کله چې د مکې مسلمانانو مدینې ته هجرت وکړ، ډیر غریب وو، په مدینه کې یې د ژوند کولو توان نه درلوده. په دې توگه پیغمبر(ص) انصارو ته توصیه وکړه چې له هغوی څخه هر یو د مکې له مسلمانانو سره د ورورولۍ عقد وتړي او هغوی ته په خپل کور کې ځای ورکړي او یو دبل په اتفاق سره د خپل ژوند د معیشت تأمین کړي چې د مکې مسلمانانو د ژوند په وضعه کې ښه والی راشي. هر وخت چې هغوی وتوانیده چې د خپل ځان لپاره د اوسیدلو ځای چمتو کړی شي او خپلې اړتیاوې په یوازځ توب سره پوره کړي، هغه وخت کولای شي له دوی څخه جلا شي.

د مواخاتو له تړون وروسته هر هغه څوک چې د یو انصار په کور کې ژوند کوي، یو ورځ د الله د رضا په خاطر د مسلمانانو په مسجد او بله ورځ به د خپل ژوند د اړتیاوو د پوره کولو په خاطر کار کوي.

منبع:

- تاریخ سیاسی اسلام، داکتر حسن ابراهیم حسن.
- سیرة النبي، مولانا صیف الرحمن مبارکپور.
- تاریخ صدر اسلام، غلام حسین زرگری نژاد.

## د (۳۵) لوست د تدریس لارښود پلان

**د تدریس مهال : دوه درسي ساعتونه (۹۰ دقیقې)**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | غزاګانې | |
| **عمومي موخه** | د حضرت محمد(ص) د غزاګانو د رامنځته کېدو د لاملونو او د هغوی له پایلو سره د زده کوونکو پېژندګلوي. | |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>– د اسلام د پیغمبر حضرت محمد(ص) له غزاګانو سره به بلد شي،<br>– د حضرت محمد(ص) د نیکو کړنو په اړه به معلومات تر لاسه کړي،<br>– د حضرت محمد(ص) د غزاګانو پیغام به د خپل ژوند سرمشق وګرځوي،<br>– د پیامبر له اخلاقو سره د مینې رامنځ ته کول.<br>– د غزاګانو په پایلو باندې به پوه شي. | |
| **د تدریس لارې او طریقې** | پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، ګروپي کار او مباحثه. | |
| **مرستندویه او اړین درسي توکي** | تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور... | |
| **د ارزونې طریقې** | تقریري، تحریري، مشاهده وې، صنفي تست او داسې نور ... | |
| **لومړني فعالیتونه او د انګیزې رامنځته کول** | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول، ستړې مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>**د انګیزې رامنځته کول**<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول. | **وخت په دقیقو**<br>**۱۰ دقیقې** |

| منځنۍ او وروستی کړنې | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - پر تخته باندې د لوست د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست تشریح او توضیح،<br>- په ډلو باندې د زده کوونکو ویشل او د دندو سپارل،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د لوست ارزونه او د کورنۍ دندې سپارل،<br>- د تدریس په وخت کې ښه څارنه. | - د ښوونکي څرګندونو ته پام کول،<br>- د لوست په بهیر کې د مهمو مطلبونو یاداشت،<br>- په ټولګي کې د ډلو د استازو لخوا د لوست او مهمو مطلبونو وړاندې کول،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- په کور او ټولګي کې د دندې سرته رسول،<br>- د نظم او دسپلین رعایت کول. | ۸۰ دقیقې |

**د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- د بدر په غزا کې له مشرکینو څخه اویا تنه ووژل شول.

۲- د احد غزا د منځته راتلو لامل د بدر د غزا د تلفاتو پر وړاندې د مکې د کفارو غچ اخیستل وو.

۳- د کفارو او مشرکینو د ماتې لامل د خندق په غزوه کې د خندق کیندل، د حضرت نعیم بن مسعود مسلمان کیدل او ډیر چټک طوفان و.

**اضافي معلومات**

وروسته له هغه چې حضرت محمد(ص) په مدینې منوره کې د اسلامي حکومت بنسټ کیښود او د اسلام بنسټونه یې ټینګ کړل. د اسلامي حکومت په جوړیدو سره ورځ په ورځ د مسلمانانو قوت زیاتیده. د مکې کفار یې په ویره کې واچول او د هغوی هڅې د مسلمانانو د ازارولو لپاره زیاتې شوې. په دې توګه د بدر، احد، بنی نظیر، خندق او بني قریظه غزاګانې د مسلمانانو او کفارو تر منځ د خدای په فرمان رامنځته شوې.

د بدر غزا لومړنۍ غزوه وه چې د مکې د کفارو او مسلمانانو تر منځ پیښه شوه چې د روژې د میاشتې په اولسمه او د هجرت په دویم کال په هغه ځای کې چې بدر نومیده، د مسلمانانو سرتیرو د زړورتیا او قوي ایمان په پایله کې رامنځته شوه. سره له دې چې د اسلام د دښمنانو شمیر څو برابره وو بیا هم پر مشرکانو باندې یې بری تر لاسه کړ چې دغه غزا د کفارو لپاره د پند او حیرانۍ وړ وګرځیده او هغوی یې متوجه کړل چې مسلمانان تر کومه حده پورې له خپل دین سره مینه لري او د هغه د دفاع لپاره حتی له مرګ څخه هم نه ویریږي.

خدای(ج) د بدر په غزا کې د مکې کفار خوار او ذلیل کړل، تر هغه ځای پورې چې تصمیم یې ونیوه چې له مسلمانانو سره یو ځل بیا جګړه وکړي او د بدر ننګ له خپل لمنو څخه پاک کړي. په دې توګه جګړې ته چمتو شول او مسلمانان هم مجبوره شول چې د اسلام د سپیڅلي دین او د خپلو دیني ارزښتونه د دفاع په خاطر د احد، بنی نظیر، خندق او بني قریظه په غزاګانو لاس پورې کړي چې د هغوی شرح د کتاب په متن کې راوړل شوي ده. ورته دې مراجعه وشي.

منبع:

- تاریخ سیاسی اسلام، داکتر حسن ابراهیم حسن.
- سیرة النبي، مولانا صیف الرحمن مبارکپور.
- تاریخ صدر اسلام، غلام حسین زرګری نژاد.

## د (۳٦) لوست د تدریس لاربنود پلان

**د تدریس مهال: یو درسی ساعت (٤٥ دقیقې)**

<table>
<tr><td>د مطلبونو سرلیکونه</td><td colspan="2">د مطلبونو شرح</td></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="2">د حدیبې سوله</td></tr>
<tr><td>عمومي موخه</td><td colspan="2">زده کوونکي دې د حد یبې د سولې – بیعت الرضوان سره بلد شي.</td></tr>
<tr><td>پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې</td><td colspan="2">زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- د حد یبې د سولې د مفهوم او ارزښت په اړه به معلومات تر لاسه کړي،<br>- د غزوې د مفهوم او د خیبر او موتې عزاگانو په اړه به معلومات ترلاسه کړای شي،<br>- د حد یبې د سولې ارزښت به تحلیل کړای شي،<br>- غزوه، سریه او جگړه به یو له بل سره پرتله کړای شي،<br>- په ژوند کې به د سولې له ښیگنو څخه خوند واخلي.</td></tr>
<tr><td>د تدریس لارې او طریقې</td><td colspan="2">پوښتنې او ځوابونه، توضیح او تشریح، گروپي کار او مباحثه.</td></tr>
<tr><td>مرستندویه او اړین درسي توکي</td><td colspan="2">تخته، تباشیر، مارکر، نقشې، اطلسونه، انځورونه، چارت، سلاید، قلم او داسې نور...</td></tr>
<tr><td>د ارزونې طریقې</td><td>تقریري، تحریري، مشاهده وي، صنفي تست او داسې نور ...</td><td>وخت په دقیقو</td></tr>
<tr><td>لومړني فعالیتونه او د انگیزې رامنځته کول</td><td>لومړني فعالیتونه<br>سلام اچول، ستړی مشي، د لوست د اړینو توکو چمتو کول، د تیر لوست ارزونه او د حاضرۍ اخیستل.<br><br>د انگیزې رامنځته کول<br>د لوست په اړوند د پوښتنو طرح کول، د نقشې او انځور ښودل او یا د یوه په زړه پورې تاریخي مطلب وړاندې کول.</td><td>۱۰ دقیقو</td></tr>
</table>

| منځنۍ او وروستۍ کړنې (فعالیتونه) | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|---|
| | - د لومړنیو فعالیتونو سرته رسول او د انګیزوي پوښتنو کول،<br>- پر تخته باندې د سرلیک لیکل،<br>- پر تخته باندې د مهمو مطلبونو لیکل،<br>- د لوست توضیح کول،<br>- له زده کوونکو څخه پوښتنې،<br>- پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- د ډله ییزو کارونو څارل،<br>- د لوست خلاصه کول او کره کتنه،<br>- له ټولګي څخه د باندې د دندو سپارل. | - په لومړنیو فعالیتونه کې ګډون،<br>- د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیول او پام کول،<br>- په کتابچو کې د مهمو مطلبونو یاداشت نیسي،<br>- د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکول،<br>- له ښوونکي څخه پوښتنې کول،<br>- په ډله ییزو کارونو کې فعالانه ګډون،<br>- له ټولګي څخه بهر د فعالیتونو سرته رسول. | ۳۵ دقیقې |
| | **د لوست د متن پوښتنو ته ځوابونه**<br>امکان لري چې زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ووایي، تاسو ته ښایي چې ونه وایاست چې د چا ځواب سم او د چا غلط دی. پوښتنو ته تر هغې وخته ادامه ورکړئ چې سم ځواب د زده کوونکو لخوا وویل شي.<br>۱- د حدیبې سوله،<br>۲- د روم قیصر، د ایران پاچا، د مصر عزیز او د حبشې پاچا،<br>۳- د موتې د غزا لامل.<br>عباسیانو د حضرت پیغمبر قاصد(استازی) په شهادت ورساوه. | | |

**اضافي معلومات**

د حدیبې د سولې ګټورې پایلې په دې توګه دي:

۱- د رسول الله(ص) ځینو اصحابو ویلي دي: هیڅ پیښه د حدیبې د سولې په شان د مسلمانانو لپاره ګټوره نه وه، که څه هم ځینې مسلمانان په پیل کې په دغو ښېګنو پوه شوې نه وو.

۲- د حدیبې سوله د مسلمانانو لپاره یو بریالیتوب و، ځکه: له دې تاریخ څخه وروسته هر څوک چې اسلام ته راوبلل شول، هغوی اسلام ومانه.

۳- د حدیبې په سوله کې، مشرکانو په ځان شاهدي ورکړه چې پیغمبر (ص) او مسلمانان له قریش قبیلې څخه جلا او خپلواکه ځواک دی.

۴- د حدیبې د سولې په پلې کولو سره، مسلمانان، نوی ټولنیز نظام او نوو انساني اړیکو سره د اسلام په نوم بلدیږي. له دې کبله، هغوی چې اسلام راوړ او هغوی چې اسلام و نه مانه، په رسمي توګه یې په دې نظم او اړیکو اعتراف وکړ .

۵- د ثقیف او قریش قبایلو څخه ځینې هوښیار کسان پدې وپوهیدل چې اسلام په نږدې وخت کې بریالی شي. له دې کبله یې د اسلام سره له مخالفت لاس واخیست.

۶- د حدیبې سولې، د یهودو او قریشو هغه تړونونه او یووالي چې د اسلام پر ضد یې کړی و له منځه یووړل.

**بیعت الرضوان:** څرنګه چې د قریشو مشرکینو د رسول الله(ص) استازی (حضرت عثمان(رض)) له خپل ځان سره وساته. له دې کبله رسول الله(ص) له مسلمانانو څخه تعهد (بیعت) واخیست چې ونه تښتي، په دې توګه دغه بیعت د بیعت الرضوان په نوم یاد شوی دی.

